

# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
کور د سولې کور د تورې
دا وطن د ټولو کور دی
د پښتون او هزاره وو
ورسره عرب، گوجر دي
براهوي دي، قزلباش دي
دا هېواد به تل ځلیږي
په سینه کې د آسیا به
نوم د حق مو دی رهبر

دا عزت د هر افغان دی
هر بچی یې قهرمان دی
د بلوڅو د ازبکو
د ترکمنو د تاجکو
پامیریان، نورستانیان
هم ایماق، هم پشه یان
لکه لمر پر شنه آسمان
لکه زړه وي جاویدان
وایو الله اکبر وایو الله اکبر

# د کتاب ځانګړتیاوې

**مضمون:** تاریخ

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د تاریخ دیپارتمنت د درسي کتابونو مؤلفین

**اډیټ کوونکي:** د پښتو ژبې د اډیټ دیپارتمنت غړي

**ټولګی:** اتم

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۸ هجري شمسي

**د چاپ ځای:** کابل

**چاپخونه:**

**برېښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af

## د پوهنې د وزير پيغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او بښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته يې ژوند رابښلی، او د لوست او ليک له نعمت څخه يې برخمن کړي يو، او د الله تعالی پر وروستي پيغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پيغام ورته (لوستل) و، درود وايو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمريز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونيز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدينو شوراګانې د هېواد د پوهنيز نظام شپږګوني بنسټيز عناصر بلل کيږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختيا او پرمختيا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونيز نظام کې د ودې او پراختيا په لور بنسټيزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونيز نصاب اصلاح او پراختيا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړيتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځيو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونيزو تأسيساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کيفيت او توزيع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور يو، چې د باکيفيته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنيو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونيز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مديرانو څخه په درناوي هيله کوم، چې د هېواد بچيانو ته دې د درسي کتابونو په تدريس، او د محتوا په لېږدولو کې، هيڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د يوه فعال او په ديني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زيار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤوليت په درک سره، په دې نيت لوست پيل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د يوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځيرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدريس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونيز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په ليکلو او چمتو کولو کې يې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپېڅلي او انسان جوړوونکې هڅې کې بريا غواړم.

د معياري او پرمختللي ښوونيز نظام او د داسې ودان افغانستان په هيله چې وګړي يې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزير

دکتور محمد ميرويس بلخي

# لیک لړ



# لومړی څپرکی



## افغانستان او اسلام

تر پورتني سرليک لاندې لوستونه راغلي دي:

۱- افغانستان ته د اسلام راتګ،

۲- د افغانستان اوضاع د امويانو په دوره کې،

۳- د افغانستان اوضاع د عباسيانو په دوره کې،

۴- د افغانستان د خلکو او مسلمانو عربو يو پر بل باندې متقابلې اغيزې.

# د ښپړکې موخې:

۱- په هېوادکې د اسلام د دین د خپرېد د څرنګوالي او د اسلام د څرګندېدو په درشل کې د افغانستان له عمومي اوضاع سره د زده کوونکو آشنا کول،

۲- د امویانو او عباسیانو په دورو کې د افغانستان له عمومي اوضاع سره د زده کوونکو آشنا کېدل،

۳- په درېو لومړنیو هجري پېړیو کې د افغانستان د خلکو او عربو مسلمانانو ترمنځ له راکړې ورکړې سره د زده کوونکو آشنا کېدل.

## افغانستان ته د اسلام راتگ



په کابل کې د شاه دوشمشېره جومات

آیا پوهېږئ چې افغانستان ته اسلام څرنگه راغی او زموږ خلکو ولې د اسلام اسماني دین ومانه؟

### د افغانستان اوضاع د اسلام د څرگندېدو پر مهال

د اسلام د راتگ په نژدې وختونو کې افغانستان د ژوند د بېلا بېلو اړخونو له پلوه د یوه بنسټيز بدلون لپاره چمتو شوی و.

د ساري په ډول: زموږ په هېواد کې یو داسې پیاوړی حکومت چې ولایتونه او بېلا بېلې سیمې تر خپلې واکمنۍ لاندې ولري شتون نه درلود او هره برخه د بېلا بېلو واکمنانو له خوا اداره کېدله. د هېواد په شمال کې **ترکانو** حکومت کاوه او د **هندوکش** په سوېل کې د **رتبیل شاهانو** واکمني وه. په لوېدیځ کې په **ساسانیانو** پورې تړلو والیانو د چارو واگې په لاس کې لرلې.

له ټولنيز پلوه د طبقاتو شتون او د ویني او توکم په اصالت باندې باور هم خلک له ستونزو سره مخامخ کړي وو. د کورنۍ جوړښت هم ټینگ او محکم بنسټ نه درلود، په ښځو باندې ظلم روا گڼل کېده او له دیني پلوه هم زموږ هېواد وال د بېلا بېلو ادیانو منونکي وو. په تېره **بودايي** او **زردشتي** ادیانو ډېر منونکي او پلویان درلودل.

لمر ته عبادت هم رواج درلود او له بلې خوا د لوړ پوړو شخصیتونو او د ځواک د خاوندانو له خوا د ظلمونو او تېریو او د عدالت د نشتوالي له کبله په خلکو کې یوه عمومي نارضایتي او ګډوډي تر سترګو کېده.
په همدې حالت کې د اسلام اوازه زموږ هېواد ته راورسېده. یعنې هغه دین چې خلک یې یو ځښتن، خپلواکۍ، عدالت او برابرۍ ته رابلل. ډېر ژر د دې دین دعوت کوونکو او مجاهدینو ځانونه زموږ د هېواد تر پولو راورسول.

## د اسلام د دین خپرېدل



د افغانستان په لوري د اسلام پرمختګ د **حضرت عمر فاروق** رضي الله عنه د خلافت په دوره کې پیل شو. له **نیشاپور** څخه وروسته **هرات** لومړنی ښار و چې د مسلمانانو تر ولکې لاندې راغی. وروسته نور ښارونه هم د اسلام د لښکرو لاس ته ورغلل.

په تېره له ۴۱ سپوږمیز/۶۶۱ ز کال څخه وروسته، دغه پر مختګونو لا زور واخیست او زموږ د هېواد ډېر ښارونه د مسلمانانو تر ولکې لاندې راغلل، خو د اسلام د دین مکمل رواج او خپرېدنه هغه مهال پیل شوه، کله چې دننه په هېواد کې یو لړ کورنیو عناصرو او ځواکونو، لکه **سیستاني صفاریانو** د اسلام دین ته د ساتنې او د دغه آسماني دین د خپرېدلو لپاره خپلې ملاوې وتړلې.

### په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي، لومړۍ ډله دې د افغانستان اوضاع له اسلام څخه دمخه روښانه کړي او دویمه ډله دې په افغانستان کې د اسلام د خپرېدو څرنګوالی بیان کړي.

### پوښتنې

۱- د اسلام د راتګ پر مهال زموږ د هېواد په شمالي او لوېدیځو برخو کې کوم قومونه واکمن وو؟
۲- د هغو ادیانو نومونه واخلئ چې له اسلام څخه مخکې زموږ په هېواد کې دود وو.
۳- ستاسو په اند زموږ په هېواد کې ولې خلکو له اسلام څخه هرکلی وکړ؟
٤- ولې یوشمېر خلکو د عربو واکمنانو په وړاندې پاڅون وکړ؟

# د افغانستان حالت د امويانو په دورې کې




د امويانو د کورنۍ په باب څه معلومات لرۍ. آيا خبر ياست چې د دوی په دورې کې اسلام ډېره پراختيا موندلې؟

**اموي کورنۍ** د **قريشو** له قوم څخه وه. هغوی له **٤١** سپوږميز/ ۶۶۱ ز کال نه وروسته اسلامي خلافت ترلاسه کړ او ۹۰ کاله يې په اسلامي نړۍ باندې حکومت وکړ. د امويانو د واکمنۍ پر مهال اسلام د نړۍ په ډېرو سيمو کې خپور شو.

د دوی په زمانه کې د افغانستان کابو ټولې سيمې د اسلام په رڼا روښانه شوې او د عربو بېلې بېلې قبيلې له **جزيرة العرب** څخه **خراسان** يا **اوسني افغانستان** ته راکډوالې شوې.

## د يحيى بن زيد پاڅون

د افغانستان خلکو ځينې وخت د اموي واکمنانو په وړاندې له پاڅونونو څخه چې د دوی د سياسي مخالفينو له لوري ترسره کېدل، ملاتړ کاوه.

له دغو پاڅونونو څخه يو هم د بني هاشم د کورنۍ د يوه غړي **يحيى** د **زيد د زوی** پاڅون وو چې په **جوزجان** کې رامنځ ته شو. يحيى په ۱۲۶ سپوږميز/ ۷۴۴ ز کال کې له خپلو ۱۲۰ تنو ملگرو سره ووژل شو.

## ابومسلم خراساني

**عبدالرحمن** چې **ابومسلم یې لقب و**، په ۱۰۰ سپوږمیز/ ۷۱۹ ز کال د **جوزجان** په **سفید نج** کې زېږېدلی او د **زید د زوی یحیی** تر شهادت وروسته یې د امویانو پر ضد د پاڅون مشري په غاړه واخېسته او په۱۲۹ سپوږمیز/ ۷۴۷ ز کال کې یې د کوچني اختر په ورځ په سفید نج کې د امویانو بیرغ راکوز کړ او په ځای یې د عباسیانو جنډه چې تور رنګ یې درلود، پورته کړه.



ده د خلکو په مرسته د افغانستان ځينې نامتو ښارونه يو په بل پسې ونيول. ابومسلم په وروستيو کې اموي دولت ته ماتې ورکړه او په ۱۳۲ سپوږميز/ ۷۵۰ ز کال کې يې خلافت د عباسيانو ښانګې ته ولېږه، خو عباسي خليفه منصور چې د خراسان د خلکو ترمنځ يې د ده له نفوذ څخه وېره درلوده، بالاخره هغه يې په ۱۳۷ق/۷۵۵ ز کې په يو چل سره وواژه. ابو مسلم په دې وخت کې ۳۸ کلن و.



د ابومسلم پاڅون له تورو جنډو سره

## امير پولاد او امير کروړ

**امير پولاد** د افغانستان په مرکز کې د **غور** له اميرانو څخه و . ده هم کله چې واورېدل چې د افغانستان خلک د ابو مسلم خراساني پر شاوخوا راټول شوي، په عباسي نهضت کې يې ګډون وکړ.

**امير کروړ** د امير پولاد زوی و. ده هم په **عباسي پاڅون** کې د پام وړ برخه لرله. او زياتې برياوې يې ترلاسه کړې دي.

دی د پښتو ژبې یو ډېر پوه، لایق او پوخ شاعر هم و. ویل کېږي چې د اسلام له راتګ څخه وروسته لومړنی پښتو حماسي شعر ده ویلی دی.





### په ټولګي کې فعالیت:

زده کوونکي دې په دوو الف او ب ډلو ووېشل شي. الف ډله دې د ابومسلم د پاڅون لاملونه څرګند کړي او د ب ډله دې له نقشې څخه په ګټې اخیستنې سره د امویانو د خلافت د مرکز په لوري د ابومسلم او د هغه د پلویانو تګ لوري وټاکي.



### پوښتنې

۱- ولې د افغانستان خلکو د اموي خلافت ضد پاڅونونو څخه پلوي وکړه؟

۲- لاندې تش ځایونه په خپلو کتابچو کې ډک کړئ:

ابومسلم په ............... وزېږېد او له دې څخه چې د ................... پر ضد یې پاڅون وکړ. خلکو له هغه څخه پلوی وکړ.

۳- امیر پولاد او امیر کروړ د افغانستان په کوم ځای کې امارت درلود؟

٤- ستاسو په اند امیر پولاد او امیر کروړ ولې له عباسي پاڅون او نهضت څخه پلوی وکړ؟

## د افغانستان حالت د عباسیانو په دورې کې




د عباسي کورنۍ په هکله څه معلومات لرئ؟ آیا خبر یاست چې هغوی د افغانستان د خلکو په ملاتړ خلافت ته ورسېدل.

عباسیان د اسلام د ګران پیغمبر ﷺ تره (حضرت عباس رضي الله عنه) ته منسوب دي او د قریشو له هاشمي خانګې څخه ګڼل کېږي. عباسي کورنۍ د لومړنۍ هجري پېړۍ څخه وروسته د سیاست ډګر ته ودانګل. کله چې د افغانستان د هغه وخت له ناآرامې وضعې څخه خبر شول، نو په ۱۰۹ سپوږمیز/ ۷۲۷ ز کال کې یې خپل داعیان او مُبلغان زموږ هېواد ته راواستول.

د افغانستان یا د هغه وخت د خراسان خلکو چې د ځینو عربي واکمنانو د کړنو په وړاندې یې ښه نظر نه درلود، له عباسي غورځنګ څخه پلوي وکړ. عباسیان زموږ د خلکو د سرښندنو او مبارزو له امله په ۱۳۲ سپوږمیز/ ۷۵۱ زېږدیز کال کې خلافت ته ورسېدل. د عباسیانو د خلافت دوره ۵۲۳ کاله وه او په پای کې په ۶۵۶ سپوږمیز/ ۱۲۵۸ز. کال کې د خلافت دغه لړۍ د مغولو په واسطه له منځه ولاړه.

**برمکیان**

برمکیان په اصل کې د یوه شخص چې برمک نومېده، له اولادې څخه دي. برمک د بلخ د نوبهار د زردښتي اورتون یو موبد روحاني و. د دې کورنۍ نومیالی او ستر شخصیت **خالد** د برمک زوی دی چې د منصور عباسي د وزیر او سلاکار په توګه یې دنده ترسره کوله. له خالد څخه وروسته د ده زوی **یحیی** د دې کورنۍ یو بل نومیالی او د نفوذ خاوند بلل کېږي. دی د عباسي خلیفه مهدي له لوري د هارون الرشید د

ښوونې او روزنې لپاره د ښوونکي په توګه وګمارل شو.

ده وروسته بیا د **هارون الرشید** د حکومت په دورې کې د عباسي خلافت ټولې چارې په خپل لاس کې ونیولې او له خپلو دوو زامنو سره یې هغوی ته کار کاوه. څه موده وروسته هارون الرشید پر هغوی باندې بدګومان شو. په ۱۸۷ سپوږمیز/ ۸۰۳ ز کال کې یې جعفر د یحیی زوی وواژه او په خپله یحیی او د ده کورنۍ یې بندي کړه. د برمکیانو ټول مالونه یې ضبط کړل. له دې پېښې وروسته **برمکیانو** څخه بل داسې ستر شخصیت راپورته نه شو.

### په عباسي دورې کې کلتور او پوهنه

د عباسیانو په پېر (دورې) کې افغانستان د یوشمېر سترو شخصیتونو د ځلېدو کتونکی او شاهد و چې د علمي او ادبي آثارو په لیکلو سره یې خپل نومونه تل پاتې کړي دي. د ساري په ډول:

**محمد، احمد او حسن** د موسی بن شاکر خراساني زامن چې په **ریاضیاتو** کې یې له ځانه کتابونه لیکلي دي. دغه راز ابومعشر جعفر بن محمد بلخي مشهور ریاضي پوه چې ۱۲ کتابونه یې تالیف کړي دي، **بشار** بن برد تخارستاني چې په عربي شعر کې یې ډېر نوم وتلي و؛ **ابوزید** احمد بن سهل بلخي یو ادیب، متکلم، فیلسوف او د جغرافیه پوه و، ابوزید چې د جغرافیې او فلسفې په پوهنو کې یې کتابونه تألیف کړي دي، **ابو محمد هاشم** بن زید سرواني چې د عربو د شعر په باره کې یې کتاب ولیکه.





په بلخ کې د ابونصر پارسا جومات

### په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په ګډه، د عباسیانو په دوره کې د افغانستان د خلکو د مهمو خدمتونو په اړه خبرې اترې وکړي او هغه دې فهرست کړي.

### پوښتنې

۱- لاندې تش ځایونه په خپلو کتابچو کې ډک کړئ:

عباسیانو د خلکو د .................... په دلیل زموږ په هېواد کې ځان ته د پښو د پل ځای ومونده.

**۲**- د دې دورې د درې فرهنګي شخصیتونو نومونه واخلئ.

۳- د نوبهار اورتون په دغو لاندې کومو ښارونو کې شتون درلود؟

الف کندهار　　ب هرات　　ج بلخ　　د کابل

# د افغانستان د وګړو او عربو مسلمانو متقابلې اغېزې



ايا پوهېږئ چې افغانستان او اسلام يوه له بل سره ډېر مهم خدمتونه کړي دي؟

د اسلام په راتګ سره زموږ هېواد د خپل تاريخ په يوه نوي پړاو کې ګام کېښود. اسلام زموږ خلکو ته يو نفري هويت ورکړ او تر دې وروسته زموږ هېواد اسلامي هېواد وبلل شو. دغه نوی هويت زموږ د خلکو د لا ټينګ يووالي لامل وګرځېد، ځکه ټول قومونه او قبايل د يوه دين او يوې عقيدې او فکر خاوندان شول.



د اسلام دين هغه خنډونه چې د پوهې د ترلاسه کولو په لارې کې يې شتون درلود، له منځه لرې کړل او د پوهنې انحصار يې چې د ځواکمنو خلکو، شتمنو وګړو او حکم چلوونکو انسانانو په واک کې وو، له منځه يوړ. په همدې دليل علم او پوهنې وده وکړه، زموږ په هېواد کې د پوهانو او عالمانو شمېر زيات شو او ډېر شمېر خلکو د پوهې په برخه کې مهم خدمتونه وکړل.

له بله پلوه، زموږ د هېواد خلکو د  اموي دورې د ځينو عربو واليانو د بې عدالتۍ په وړاندې پاڅون وکړ. او په **عباسي نهضت** کې د **ابومسلم خراساني** تر مشرۍ لاندې راټول شول.

دغه راز زموږ د هېواد وګړو د اسلام د خپرولو لپاره ډېرې سربښندنې او قرباني ورکړې او ختيځو سيمو ته يې اسلام خپور کړ.

لنډه دا چې د اسلام او افغانستان اغېزه يوه متقابله اغېزه ګڼل کېدای شي. اسلام دين زموږ خلکو ته يو نوی هويت ورکړ، خلکونه يې يووالی او وحدت ور وباښه، د علم او پوهې دروازه يې پرانيستله يې. د افغانستان خلکو هم د پوهنيزو او کلتوري خدمتونو له لارې او دغه راز له سر او ځان څخه د تېرېدنې په ذريعه يې د اسلامي تمدن د پرتمينې ماڼۍ په ودانولو کې ښه او ډېره برخه واخېسته. په تېره بيا پوهانو په دې برخه کې ډېر کوښښونه او هڅې وکړې.



په مزار شريف کې د حضرت علي بن ابي طالب (رض) زيارت ځای

## په ټولګي کې فعاليت

زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د اسلام خدمتونه افغانستان ته او دويمه ډله دې اسلام ته د افغانستان خدمتونه څرګند کړي.

## پوښتنې

۱- ستاسو په اند د اسلام ډېره مهمه اغېزه په افغانستان باندې څه وه؟

۲- د اسلام له راتګ څخه وروسته، ولې زموږ په هېواد کې پوهان ډېر شول؟

۳- ايا اسلام په دې بريالی شو چې زموږ خلک متحد او يو کړي؟ روښانه يې کړئ.

۴- لاندې تش ځايونه په خپل کتابچو کې ډک کړئ.

اسلام راغی ................ ته يې بدلون ورکړ او مونږ ته يې ......................... راوباښه.



په هرات کې د اختيارالدين کلا

# دويم څپرکی



## د افغانستان خپلواک اسلامي حکومتونه

د افغانستان خپلواک اسلامي حکومتونه تر سرليک لاندې لوستونه شامل دي:

١- طاهريان، صفاريان او سامانيان،

٢- غزنويان او سلجوقيان،

٣- غوريان او خوارزم شاهان،

٤- مغولان، تيموريان او د کرت کورنۍ.

# د څپرکي موخې

په دې څپرکي کې زده کوونکي له لاندې مطالبو او موضوعاتو سره آشنا کېږي.

۱- په افغانستان کې د خپلواکو سیمه ییزو اسلامي حکومتونو د جوړېدو له لارو چارو سره د زده کوونکو آشنا کېدل،

۲- له هغو شخصیتونو سره چې د لومړي ځل لپاره یې د خپلواکۍ په لاره کې گامونه پورته کړل،

۳- په افغانستان کې له اسلام څخه وروسته د اسلامي سیمه ییزو واکمنانو له لړیو سره د زده کوونکو بلدتیا،

۴- د سیمه ییزو حاکمانو د کورنیو او پاچاهانو ترمنځ د اړیکو په څرنګوالي باندې د زده کوونکو آشنا کېدل،

۵- په افغانستان باندې د چنګیز او تیمور د لښکرو د یرغل څرنګوالي او دغه راز د مُغولو او کرت د اولادې ترمنځ د اړیکو د جوړېدو له څرنګوالي سره د زده کوونکو آشنا کول.

## طاهريان، صفاريان او سامانيان




آيا پوهېږئ چې لومړني اسلامي خپلواک حکومتونه زموږ په هېواد کې جوړ شول؟

## طاهريان

**طاهر** د حسين زوی په اصل کې د هرات د **پوشنگ** او يا اوسني **زنده جان** له وگړو څخه و. دی په **۱۵۹** سپوږمیز/ ۷۷۶ ز کال کې زېږېدلی دی.

طاهر د ځوانۍ له پيل څخه د هېواد په ټولنيزو او سياسي چارو کې گډون کاوه. ده د دوو عباسي ورونو له منځه د مامون الرشيد پلوي کوله او په ۱۹۵ سپوږمیز/ ۸۱۱ ز کال کې يې امين وواژه.

له دې وروسته مامون الرشيد د مسلمانانو خليفه شو. طاهر د خليفه له لوري د خراسان د واکمن په توگه وگمارل شو او د ۲۰۷ سپوږمیز/ ۸۲۲ ز کال د جمعې په ورځ منبر ته لاړ او د خليفه نوم يې له خطبې څخه وغورځاوه او خپله خپلواکي يې اعلان کړه، خو د همدغې ورځې په سبا هغه ووژل شو. له طاهر څخه وروسته د ده زامنو ۵۵ کاله د افغانستان په ځينو برخو باندې واکمني وکړه.

د دې کورنۍ وروستنی تن **محمد** نومېده چې په ۲۵۹ سپوږمیز/ ۸۷۳ ز کال کې د ليث صفاري د زوی **يعقوب صفاري** له خوا ونيول شو او د سيستان په بندتون (زندان) کې مړ شو.

## صفاريان

د دې کورنۍ بنسټ ایښودونکی او پیلوونکی **یعقوب** صفاري د لیث صفاري زوی دی. دی د سیستان له خلکو څخه و. په ۲۰۷ سپوږمیز/ ۸۲۲ ز کال کې د افغانستان په سوېل لوېدیځې سیمې کې وزیږېد. پلار یې د مسګرۍ دنده درلوده. له همدې امله یعقوب او د ده ورونو عمرو، علي او طاهر ته صفاريان ویل کېږي.

یعقوب په ځوانۍ کې د **عیارانو** له ډلې سره ملګری شو. دی په دې ډلې کې د مشرتابه رتبې ته ورسېد. یعقوب صفاري د عیارانو په مرسته د سیستان بېلابېل ښارونه ونیول، خو د سیستان د خلکو رسمي بیعت له ده سره د ۲۴۷ سپوږمیز/ ۸۶۱ ز کال د محرم د میاشتې په پنځه ویشتمه ورځ وشو، له دې وروسته یعقوب له **زنبیل شاه** سره جګړې پیل کړې چې د دې جګړو په پایله کې زموږ د هېواد ړتې او مهمې سیمې د یعقوب لښکرو ونیولې، دغه راز د طاهریانو د کورنۍ وروستی واکمن محمد هم بندي شو.

یعقوب صفاري چې په ځان کې یې د توان او ځواک احساس کاوه، په ۲۶۲ سپوږمیز/ ۸۶۷ ز کال کې د عباسي خلافت د پلازمېنې (مرکز) د بغداد د اداري غوښتونکی شو چې په پایله کې داکار له عباسي خلیفه معتمد باالله سره په جګړه واوښت، خو یعقوب ماته وخوړه او په شا شو.

یعقوب په ۲۶۵ سپوږمیز/ ۸۷۹ ز کال کې مړشو او له ده څخه وروسته دده ورور عمرو پاچا شو. صفاري عمرو چې **سامانیان** یې خپل رقیبان ګڼل، په ۲۸۷ سپوږمیز/ ۹۰۰ میلادي کال کې له هغوی سره جګړې ته ورغی، خو بلخ ته نژدې یوې سیمې کې یې ماتې وخوړه او د اسماعیل ساماني له خوا بندي شو. له دې څخه وروسته، صفاري حکومت په محدوده توګه تر ۳۰۰ سپوږمیز/ ۹۱۳ ز کال پورې په **سیستان** کې دوام درلود.



# سامانیان

سامانیان د یوه شخص چې سامان نومېده له اولادې څخه ګڼل کېږي. سامان د بلخ له خلکو څخه و چې د امویانو د خلافت پر مهال مسلمان شوی و. د ده زامن په حکومتي دفترونو کې رېو او مهمو دندو ته ورسېدل. د سامانیانو د حکومت بنسټ ایښودونکی اسماعیل ساماني دی.

امیر اسماعیل اته کاله ټولواکي وکړه. د **بخارا** ښار یې خپله پلازمېنه وټاکله او ودان یې کړ. د امیر اسماعیل له مړینې وروسته، د ده زوی احمد او تر هغه وروسته نصر ټولواکۍ ته ورسېد، د نصر د واکمنۍ په دوران کې د سامانیانو دولت ډېر ښه وځلېد. خپل اوج او لوړې پوړۍ ته ورسېد. څکه د ده په زمانه کې ډېر شمېر پوهان د سامانیانو په دربار کې سره راغونډ شول.

ساماني حکومت په لومړي سر کې ښه نظم او ښه اداره درلوده، خو له هغه څخه وروسته چې سیمه ییزو واکمنانو څواک ترلاسه کړ، دغه حکومت له یولړ ستونزو سره مخامخ شو. یو له دغو محلي امیرانو څخه **الپ تګین** نومېده چې د سامانیانو له اوامرو څخه یې سر وغړاوه. ده د افغانستان



په شمال د **خلم** په سیمه کې ساماني ځواکونو ته ماتې ورکړه او له هماغه ځایه یې له خپلو پلویانو سره یوځای په ۳۵۱ سپوږمیز/ ۹۶۲ ز کال په غزني کې د یوه نوي حکومت د بنسټ ډبره کېښوده.



د بخارا په ښار کې د ساماني امیر اسماعیل قبر

### په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په ډله ییزه توګه د سامانیانو د حکومت په راپرځېدو او بیاکه کېدو باندې یو له بل سره خبرې اترې وکړي.

### پوښتنې

۱- طاهر د کوم ځای و او څرنګه حکومتي لوړو پوړیو ته ورسېد؟

۲- طاهر ولې د عباسي خلیفه نوم له خطبې څخه لرې کړ؟

۳- په لومړي سر کې کومې ډلې له یعقوب لیث صفاري څخه پلوی وکړ؟

۴- ولې د بغداد له عباسي خلیفه سره، د یعقوب لیث صفاري اړیکې وراني شوې؟

۵- د سامانیانو پلازمېنه په کوم ځای کې موقعیت درلود؟

۶- دغه تش ځایونه په خپلو کتابچو کې ډک کړئ. د سامانیانو مهم ټولواک ......... نومېده او د هغه په دربار کې ............ سره راټول شوي وو.

۷- ستاسو په اند د ساماني دولت د حالت د خرابېدو لامل څه و؟

# غزنویان او سلجوقیان






ایا پوهېږئ چې غزنویانو او سلجوقیانو په افغانستان کې څواکمن حکومتونه رامنځ ته کړل؟

د غزنویانو د لړۍ بنسټ ایښودونکی **الپ تگین** دی. هغه د سامانیانو په دربار کې له ترکي توکمه امیرانو او سردارانو څخه یو تن و، خو د غزنویانو حکومت د **سبکتگین** په واسطه رامنځ ته شو. دی د الپ تگین زوم و او د غزني له ټولواک (لویک) څخه یې په جگړه کې بریا ترلاسه کړه. همدارنگه سبکتگین د غزنویانو د حکومت لمن د هند تر **جیپال** پورې وغزوله، له ده څخه وروسته د هغه زوی **سلطان محمود غزنوي** ټولواک شو. ده په لومړي سر کې دننه په افغانستان کې خپل حکومت ټینگ کړ او وروسته یې بیا د هند په لوري د عسکري سوقیاتو په مټ د خپل حکومت لمن تر هغو سیمو پورې وغزوله. سلطان محمود غزنوي په دغو سوقیاتو کې ډېر غنیمتونه ترلاسه کړل او هغه یې غزني ولایت ته ولېږدول. په دغو غنیمتونو سره د غزني ښار څه نا څه ودان شو. په دغه ځای کې ډېر پوهان او شاعران، لکه: ابوریحان **البیروني**، ابومنصور **دقیقي**، **فرخي سیستاني** او **عنصري بلخي** سره راغونډ شوي وو.

## له سلطان محمود څخه وروسته غزنويان

سلطان محمود غزنوي په ۴۲۱ سپوږميز/ ۱۰۳۰ زکال کې مړ شو، له ده څخه وروسته د هغه زوی **مسعود** ټولواکۍ ته ورسېد. سلطان مسعود د خپل پلار په شان پوهه او ذکاوت نه درلود، ځکه له هغه څخه د غزنوي حکومت سرداران ناهيلي شول او د ده له پلوی څخه يې لاس واخيست. په همدې حال کې په **مرکزي آسيا** کې يو بل **ترک توکم** ځواک رامنځ ته شو. دغه ځواک **سلجوقيان** وو چې د مرو، نيشاپور او هرات تر نيولو وروسته له **غزنويانو** سره جگړې ته تيار شول. د دواړو لوريو ترمنځ په ۴۳۱ سپوږميز/ ۱۰۴۰ زکال سرخس ته نژدې د **دندان قان** په سيمه کې جگړه پېښه شوه چې په پايله کې سلطان مسعود غزنوي ماتې وخوړه او هندوستان ته وتښتېد. له دې څخه وروسته د غزنويانو کمزوری حکومت ۱۳۰ کاله دوام وکړ، خو سيمه يې ډېره محدوده وه او بالاخره دغه لړۍ د غوري شاهانو (ټولواکانو) په لاس له منځه لاړه.



د غزني بالاحصار

## سلجوقیان

سلجوقیان هم د ترکمنانو له توکم څخه شمېرل کېږي. د سلجوقي ترکمنانو نیکه **سلجوق** نومېده. ده څلور زامن درلودل، د ده یو زوی د **اسرائیل** په نامه د **سلطان محمود غزنوي** له خوا ونیول شو. د هندوستان په کالنجر کې تر ۷ کلونو بندیتوب څخه وروسته هملته مړشو. دغه کار د غزنویانو او سلجوقیانو تر منځ د دښمنۍ لامل وګرځېد. د سلجوقیانو د لړۍ بنسټ اېښودونکی د سلجوق لمسی **طغرل بېګ** دی. ده د دندان قان په جګړه کې سلطان مسعود غزنوي ته ماتې ورکړه، رټ او مهم ولایتونه یې لکه: ماوراءالنهر، ایران او افغانستان یې ونیول. له طغرل بیګ څخه وروسته دده وراره الپ ارسلان واکمنۍ ته ورسېد. ده د ملازجرد په جګړې کې رومیانو ته ماتې ورکړه او کوچنۍ آسیا یې ونیوله. د ده زوی ملکشاه هم په ختیځ کې تر چین او په لوېدیځ کې د مدیترانې تر سمندرګي پورې وړاندې تګ وکړ.

## د سلجوقیانو را پرځېدل

د سلجوقیانو پراخ هېواد هم د سلجوقي شهزادګانو ترمنځ ووېشل شو. شهزادګانو د خپلو وزیرانو په مرسته چې **اتابک** نومېدل، د حکومت چارې پرمخ بېولې.

همداکار د دې لامل وګرځېد څو دغه سلجوقي پراخ هېواد ټوټې ټوټې شي چې په پایله کې نورې لړۍ، لکه: خوارزم شاهان، قراختیایان او غوریان رامنځ ته شول او د سلجوقي ستر هېواد سیمې یې ونیولې.




د سلجوقیانو د واکمنۍ سیمې نقشه

## د سلجوقيانو ستر خدمت

يو له هغو سترو خدمتونو څخه چې سلجوقيانو زموږ د هېواد کلتور او تمدن ته وکړ، دا و چې دوی **فارسي ادب** او فرهنګ ته پاملرنه کړه. فارسي ادب او فرهنګ د سلجوقيانو له لارې **عراق، آذربايجان** او **کوچنۍ اسيا** ته ولېږدېده. هغوی د معمارۍ په برخې کې هم زموږ هېواد ته ښه ناڅه خدمتونه وکړل. د سلجوقيانو په زماني کې د جوزجان په سرپل کې د **امام خورد** زيارت جوړ شو او همدارنګه د بلخ په دولت آباد کې يو **منار** تزئين وموند. همدارنګه د بلخ په لوېديځه برخه کې د **بابا حاتم** زيارت جوړ شو.



د سلجوقي د دوري يو اثر

### په ټولګي کې فعاليت

زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي، يوه ډله دې د غزني د پرمختګ او دغه راز د غزنويانو په دورې کې د فارسي ژبې او کلتور د پالنې لامل وڅېړي او دوېمه ډله دې د سلجوقيانو په دورې کې د فارسي ژبې او ادب د غوړېدو لامل څرګند کړي.

### پوښتنې

۱.غزنويان او سلجوقيان له کوم توکم څخه و؟

۲.ولې غزنوي حکومت په دې بريالی نه شو څو د سلجوقيانو په وړاندې مقاومت وکړي؟

۳.د غزنويانو او سلجوقيانو ترمنځ د جګړې لامل څه و؟

٤.د سلجوقيانو د دوو مهمو ټولواکانو نومونه واخلئ.

٥.لاندې تش ځايونه په خپلو کتابچو کې ډک کړئ.

د سلجوقيانو پراخه هېواد ...................... ترمنځ ووېشل شو او په همدې ...................................هغوی .................................. شول.

# غوریان او خوارزم شاهان




د سلطان غیاث الدین او سلطان شهاب الدین غوری په زمانه کې د افغانستان د غوریانو د امپراتورۍ سرحدات

ایا پوهېږئ چې غوري کورنۍ زموږ د هېواد ډېره لرغوني او پخوانۍ کورنۍ ده او آیا خبر یاست چې خوارزم شاهان په افغانستان کې د اسلامي سیمه ییزو حکومتونو د لړۍ وروستنۍ حکومت و؟

## غوریان

غوریان د غور یوه ډېره لرغوني او پخوانۍ کورنۍ ده. د دوی ستر نیکه **ملک شنسب** نومېده. ده د اسلام د څلورم خلیفه **حضرت علي** رضي الله عنه د خلافت په دورې کې اسلام ومانه او د غور د حکومت فرمان یې ور څخه ترلاسه کړ. غوریان د **نبي کریم** ﷺ کورنۍ بني هاشم ته ډېر وفاداره وو، ځکه خو یې په عباسي پاڅون کې هم ښه ډېره ونډه واخیسته. **امیر پولاد او امیر کروړ** د همدې کورنۍ بچیان وو. **امیرمحمد سوري** هم د غوري کورنۍ له شاهانو څخه دی. ده هم د **سلطان محمود غزنوي** د نا آرامیو په وړاندې پوره ټینګار وکړ، خو په پای کې د هغه له خوا بندي شو. له دې څخه وروسته غوریان د غزنویانو تر سلطې لاندې ورغلل. کله چې د **سلجوقیانو** حکومت رامنځ ته شو، نو غوریانو له هغوی سره هم د واکمنۍ اړیکې درلودې. **سلطان غیاث الدین** غوري او د هغه ورور سلطان شهاب الدین غوري د غوریانو د حکومت لړۍ تر هند پورې و غزوله. **سلطان شهاب الدین** غوري په ۶۰۲ سپوږمیز/ ۱۲۰۶ ز کال کې لاهور ته نژدې په یوې سېمې کې د هندوانو په واسطه ووژل شو. له هغه څخه وروسته غوري لښکرې د ستنېدو په وخت د خپه قومونو او قبایلو له خوا لوټ شوې. **خوارزم شاهانو** د دوی له ضعف او کمزورتیا څخه ګټه واخیسته او پر افغانستان باندې واکمنان شول.

## خوارزم شاهان

خوارزم شاهان په ماوراءالنهر کې د خوارزم له ښاره را پاځېدل. ویل کېږي چې د خوارزم لومړنی امیر انوشتګین غرجه نومېده. ده د غرجستانو یا اوسني هزاره جاتوله اوسېدونکو څخه و، خو لومړنی شخص چې خوارزم شاه ونومول شو، د ده زوی قطب الدین محمد و.

د دې کورنۍ نومیالی ټولواک **علاوالدین تکش** نومېده. ده وروستنی سلجوقي ټولواک **طغرل بېګ** وواژه او د ایران زیاتې سېمې او د افغانستان ځینې سیمې یې ونیولې. د ده زوی علاؤالدین محمد تر ۶۱۲ سپوږ میز/ ۱۲۱۶ زکاله پورې **غوري** دولت له منځه یووړ. د ده هېواد په هند کې ترسند او په لوېدیځ کې تر عراق پورې پراخ و. د مغلو په را منځ ته کېدو سره علاؤالدین محمد له ډېرو سترو ستونزو سره مخامخ شو، په ٦۱۷ سپوږ میز/ ۱۲۲۱ زکال کې یې له مغولو څخه ماتې وخوړه او د ایران په لوري وتښتید او په پای کې د **مازندران** د لوی سیند یوې ټاپو وزمې کې یې ځان پټ کړ او هملته مړ شو. د ده زوی جـلال الدین محمد چې د مغولو په وړاندې یې د جګړې زیات ټینګار کاوه، په ٦۲۷ سپوږمیز/ ۱۳۳۰ زکـال کې د کردانو له خوا ووژل شو په دې توګه خوارزمي حکومت په بشپړه توګه له منځه ولاړ.



د خوارزم شاهي دولت بیرغ

### په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي او د نقشې په واسطه دې لومړۍ ډله د غوریانو او دوېمه ډله دې د خوارزم شاهانو د راپاځېدلو ځایونه وښیي.

### پوښتنې

۱.د غوریانو د اسلام راوړنې مخینه (سابقه) څه وخت ته رسېږي؟

۲.د غوریانو د مهمو پاچاهانو او ټولواکانو نومونه واخلئ.

۳.خوارزم شاهان د کومو کسانو له خوا نسکور شول؟

د تش ځایونه په خپلو کتابچو کې ډک کړي.

٤.سلطان محمود غزنوي په ................. یرغل وکړ او ...................... د هغه په لاس بندي شو.

# مغولان، تېموریان او د کرت اولاده




آیا پوهېږئ چې مغولانو زموږ هېواد په خاورو او وینو لیت پیت کړ؟ آیا پوهېږئ چې د کرت اولادې د مغولانو په زمانې کې حکومت جوړ کړ؟ او آیا پوهېږئ چې تېموریانو هم زموږ د هېواد په ځینو برخو حکومت کړی دی؟

## مُغول

مُغول له مهمو آسیایي قومونو څخه دي. د دوی سیمه **مغولستان** د ترکستان او چین ترمنځ پرته ده. د دې خلکو د ژوند ښه قبایلي وه او تل له یوه ځایه بل ځای ته کډه کېدل.

مغولي قبایلو په ٦٠٢ سپوږمیز/ ١٢٠٦ زکال د یوې لویې جرګې په ترڅ کې **تموچین** د خپل لارښود په توګه وټاکه او هغه ته یې د **چنګېزخان** لقب ورکړ. ده مغولي قومونه او قبیلې لانورې هم سره یو کړې او د خپلو خلکو د لاښه نظم او ثبات لپاره یې د "**یاسا**" تر سرلیک لاندې د مقرراتو یوه ټولګه جوړه کړه.

## د مُغولو یرغل

چنګیزخان په لومړي سرکې د ماوراءالنهر په ښارونو بریدونه وکړل او په ٦١٦ سپوږمیز/ ١٢٢٠ز کال کې یې د **اترار** ښار ونیو، په دې ښار کې تر دې مخکې یو مغولي سوداګریز کاروان د دغه ښار د حاکم له خوا لوټ شوی و.

د بخارا، سمرقند، خوارزم او مروه ښارونه هم د مغولو **لاس** ته ورغلل او د دغو ځایونو په زرګونو خلك ووژل شول. **چنګیز خان** د دغو ځایونو تر نیولو وروسته، زموږ پر هېواد باندې یرغل وکړ چې له امله یې د هرات، بامیان، غزني او کابل ښارونه وران شول او خلك یې ووژل شول.

له دې وروسته، زموږ په هېواد کې یوه ډېره تیاره تاریخي دوره پیل شوه. چنګیز په **۶۲۲** سپوږمیز **۱۲۲۵** زکال **مغولستان** ته ستون او هم هلته مړشو.

په **۶۵۱** سپوږمیز/ **۱۲۵۳** زکال یو ځل بیا **هلاکو خان** د اسلامي نړۍ پر ضد لښکر راوویست او په **۶۵۶** سپوږمیز/ **۱۲۵۸** زکال کې یې د بغداد ښار ونیوه او عباسي خلیفه یې وواژه.

## د کرت کورنۍ

ځینې تاریخ پوهان د کرت کورنۍ د غوري د سلسلې او شمېر یې د سلجوقي ترکمنانو له کورنۍ څخه ګڼې. په هرات کې د دې کورنۍ لومړنی بنسټ اېښودونکی ملك شمس الدین کرت دی. ده له مغولو سره د روغې جوړې سیاست ته مخه کړه او مغولو ته د رېښتیني خدمت په بدل کې چې **ملك شمس الدین** هغوی ته وکړ، زموږ د هېواد په مهمو ښارونو باندې د حکومت کولو فرمان یې له مغولو څخه ترلاسه کړ. ده په هرات، کندهار، کابل، بُست، هزاره جات، سند او هند باندې حکومت کاوه. د ده ځايناستو هم له مغولو سره د همکاری کولو سیاست ته ادامه ورکړه. په پای کې د کرت کورنۍ د **تیمور** له خوا له منځه ولاړه.

**د ال کـرت دولـت**



## تیمور

**تیمور** هم د چنګېز کورنۍ پورې تړاو لري. دی د سمرقند د سوېل په (شهر سبز) یا شنه ښار کې وزېږېد. **تیمور** په لومړي سرکې منځنۍ آسیا ځان ته تابع کړه او د سمرقند ښار یې خپله پلازمېنه وټاکله. په دې وخت کې زموږ په هېواد کې پیاوړې حکومت شتون نه درلود، ځکه خو تیمور په اسانۍ سره وکولی شو چې هغه تر خپلې ولکې لاندې راولي. ده همدارنګه، ایران، د هند ځینې برخې، روسیه او د عثماني دولت ځمکې ونیولې، خو چې کله یې د چین د نیولو تکل وکړ، مړشو.

## د هرات تیموریان

کله چې په ۸۰۷ سپوږمیز/ **۱۴۰۴** ز کال کې تیمور مړشو، نو ورسره سم د ده پراخه امپراتوري هم ټوټې ټوټې شوه. د ده زامن او لمسیان په خپلو منځو کې په شخړو لګیا شول. د تیمور کوچني زوی **شاهرخ میرزا** د خراسان حکومت تر لاسه کړ. ده د خپل حکومت پلازمېنه د هرات ښار وټاکه او **۴۳** کاله یې حکومت وکړ. د تیمور په لمسیانو کې **سلطان حسین بایقرا** یو ډېر مهم شخصیت و. ده درې دیرش کاله حکومت وکړ د هغه د حکومت په زمانه کې هرات د خپلې ودې، پرمختیا او غوړېدا و په ډېرې لوړې پوړۍ کې ځای درلود. په هرات کې ډېر پوهان، متفکرین او صنعت کاران او د هنر خاوندان سره را ټول شول او ډېر ادبي او هنري آثار یې رامنځ ته کړل.



په همدې وخت کې پېژندل شوي انځورګران، لکه: **کمال الدین بهزاد، قاسم علي** او د تصوف له مشرانو څخه **سید قاسم انوار، عبدالرحمان جامي، علي شېرنوایي** او یو شمېر نورو خپل آثار ټولنې ته وړاندې کړل.



د هرات جامع جومات

### په ټولګي کې فعالیت:

زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. د الف ډله دې له جغرافیایي نقشې څخه په ګټې اخیستنې سره د مغولستان هېواد معلوم او د ب ډله دې زموږ د هېواد هغه ولایتونه چې د چنګیز د یرغل پرمهال د مغولو تر ولکې لاندې راغللي وو، په ګوته کړي.

### پوښتنې

۱. د مغولو د ژوند بڼه څرنګه وه؟

۲. د چنګېز د مقررې ټولګه څه نومېده او ولې یې جوړه کړې وه؟

۳. د ال کرت سیاست د مغولو په وړاندې څرنګه و؟ روښانه یې کړئ.

۴. د هرات د تیموریانو د دورې د پوهې او کلتور ډګر د دربو تنو د نامتو لویانو نومونه واخلئ.

۵. عباسي خلیفه د کوم شخص په واسطه ووژل شو؟




# دریم څپرکی



## د کندهار له پاخون څخه مخکې د افغانستان او ګاونډیو هېوادونو اړیکې

لاندې درسونه لري.

۱. د ماوراءالنهر شیبانیان او استراخانیان،

۲. د هند بابریان،

۳. د ایران صفویان.

# د څپرکي موخې

دګاونډیو هېوادونو د واکمنو لړیو سره د زده کوونکو آشنا کول، لکه:

د ماوراءالنهر شیبانیان او استراخانیان،

د هند بابریان،

د ایران صفویان،

له- افغانانو سره د نومړو لړیو د اړیکو له څرنګوالي سره د زده کوونکو اشنا کول.



په هند کې د اسلامي معمارۍ یوه بېلګه

# د ماوراءالنهر شیبانیان او استراخانیان



**ا**یا پوهېږئ چې ازبک شیبانیانو او استراخانیانو ولې د افغانستان شمالي سیمې ترخپل یرغل او ولکې لاندې راوستې وې؟
په دې لوست کې به له لاندې موضوعاتو سره **آ**شنا شئ.

## شیبانیان

د **شیبانیانو** د حکومت بنسټ اېښودونکی **محمدخان شیباني** دی. هغه ادعا کوله چې د چنګېز د زوی **جوجي** له اولادې څخه دی. شیبانیانو په لسمې هجري پېړۍ کې **ماورالنهر** ته کډه وکړه او په ۹۰۶ سپوږمیز/ ۱۵۰۱ زکال کې یې د یوه سیمه ییز حکومت بنسټ کېښود. ده همدا چې په منځنۍ آسیا کې خپلې د واکمنۍ ستنې ټینګې کړې، نو په ۹۱۲ سپوږمیز/ ۱۵۰۶ میلادي کال کې د آمو له سیند څخه را پورې ووت او زموږ د هېواد شمالي او لوېدیځې سیمې یې له بلخ څخه بیا تر هرات پورې ونیولې.

د سیستان او کندهار واکمنانو د خپلې تسلیمۍ خبر ور واستاوه، خو د **ګرمسیر** او **زمین داور** خلک تر اخره تسلیم نشول او خپل مقاومت ته یې دوام ورکړ.

محمدخان شیباني په ۹۱۶ سپوږمیز/ ۱۵۱۰ زکال کې له شاه اسماعیل صفوي سره په جګړه کې ووژل شو. له ده وروسته ازبکان بې سیکه شول او بېرته یې ماورالنهر ته شاته تګ وکړ، خو پر افغانستان یې له یرغلونو څخه لاس وانه خیست. د شیبانیانو حکومت تر ۱۰۰۷ سپوږمیز/ ۱۵۹۹ زکاله پورې وغځید. پلازمېنه یې ډېر وختونه **سمرقند** او کله هم **بخارا** وو.

## استراخانیان

استراخانیان د ازبکانو له توکم څخه شمېرل کېږي. دوی هم هڅه وکړه چې په افغانستان کې خپل نفوذ او واک ته پراختیا ورکړي. استراخانیانو په ځانګړي توګه د افغانستان د **تخار** ولایت تر خپلې اداري او کنټرول لاندې راوستی و او له هغه ځایه یې د هرات او بلخ په لوري یرغلونه کول. د دوی د دغو ناآرامیو او یرغلونو له امله زموږ ډېر شمېر خلکو خپل ځانونه له لاسه ورکړل.

ازبک استراخاني حکومت له ۱۰۰۷ نه تر ۱۱۶۷ سپوږمیز/ ۱۵۹۹ تر ۱۷۵۴ ز کاله پورې دوام وکړ. د دوی ځینو ټولواکانو د **بلخ** ښار خپله پلازمېنه ټاکلې وه. په تېره د **محمد خان** او **سبحان قُلي خان** په دورو کې کلتوري وضعې ته ښه پاملرنه شوې وه او دغه ښار ته لیکوالو او شاعرانو مخه کړې وه.



### په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکی دې د نقشې پرمخ د سمرقند او بخارا ښارونه وښیي او د افغانستان پر شمال باندې دې د شیبانیانو او استراخانیانو د احتمالي یرغل تګ لورې وښیي.

### پوښتنې

۱. ازبکو شیبانیانو چېرته ژوند کاوه. او څرنګه یې ماورالنهر او افغانستان ته لاره ومونده؟

۲. محمدخان په اصل کې د کوم شخص له اولادې څخه شمېرل کېږي؟

۳. تش ځایونه په خپلو کتابچو کې ډک کړئ:

د ................ او ................ دوې سیمې ازبکانو ته تسلیمې نه شوې او تر پایه یې ټینګار وکړ.

د بلخ کلتوري حالت د ........................ او ........................ د واکمنۍ په دورو کې ښه شو او ډېرو شاعرانو او لیکوالانو دغه ښار ته مخه کړه.

استراخانیانو معمولاً له د .................. ولایت څخه د هرات او بلخ په لور یرغلونه کول.

# د هند بابریان



تاج محل

آیا خبر یاست چې بابریانو په هند کې څه ډول موقعیت درلود؟ له افغانانو سره د بابریانو د اړیکو په اړوند څه معلومات لرئ؟

## بابریان

د **بابریانو** د لړۍ بنسټ ایښودونکی **ظهیرالدین محمد بابر** دی. د ده نسب **تیمور گورکان** ته رسېږي. ظهیرالدین محمد بابر هم د مغولانو له ډلې څخه شمېرل کېده. له همدې کبله د هغوی لړۍ په هند کې په بابریانو، گورکانیانو او مغولو مشهوره شوې ده.

ظهیرالدین محمد بابر په ۸۸۸ سپوږمیز/ ۱۴۸۳ ز کال د **ازبکستان په اندیجان** کې زېږېدلی دی. په ۱۲ کلنۍ کې د فرغانې سېمې د امیر په توگه وگمارل شو. ده په ۹۰۶ سپوږمیز/ ۱۵۰۱ ز کال کې د **سمرقند** ښار ونیوه. خو شیباني ازبکانو دی له منځنۍ آسیا څخه تېښتې ته اړ کړ، ځکه خو **بابر** کابل ته مخه کړه او دغه ښار یې په ۹۱۰ سپوږمیز/ ۱۵۰۴ز کال خپله پلازمېنه وټاکه او څو کاله وروسته یې کندهار هم ونیوه. بابرشاه په ۹۳۲ سپوږمیز/ ۱۵۲۶ ز کال د **هندوستان** په لور لښکرې وخوځولې. ده په هندوستان کې **افغاني لودي** دولت له منځه یو وړ او خپل سلطنت یې اعلان کړ.

بابر پر کابل مین و او دلته یې ځینې ماڼۍ و داني کړې. ده له مړینې څخه د مخه وصیت کړی و. چې دی دې د کابل په یوه بڼ کې خاورو ته وسپارل شي. هغه همدا اوس د کابل د بابر په بڼ کې ښخ دی.

## د بابر زامن

له بابر څخه وروسته د ده زوی **همایون** پاچا شو، خو د ده ورور **کامران میرزا** او دغه راز **سوري شېرشاه** يې پر وړاندې راپورته شول. څکه نو همایون له هند څخه وتښتېد او ایراني صفویانو ته يې پناه یو وړه. ده یو ځل بیا د صفویانو په مرسته د افغانستان ځینې سیمې، پنجاب او د هند ډهلی ونیوه.



جلال الدین محمد اکبر

د همایون زوی **جلال الدین اکبر** نومېده او د هغه د حکومت په دوران کې د هند بابریانو ډېر پرمختګ او وده وکړه. په دې وخت کې په پیر روښان باندې معروف، د بایزید انصاري تر مشرۍ لاندې د افغانانو او ګورکاني دولت ترمنځ یو لړ زوروړې شخړې رامنځ ته شوې د دغو نښتو په ترڅ کې بایزید انصاري ووژل شو، خو د روښانیانو خوځښت د نورو ۶۵ کالو لپاره د پښتونخوا په ځمکو کې دوام وکړ.

له جلال الدین اکبر څخه وروسته د ده زوی **جهانګیر** د هندوستان- پاچا شو. ده د خپل حکومت په وروستنیو کلونو کې په **کابل** کې ژوند کاوه، خو د هغه زوی **شاه جهان** په ۱۰۶۷ سپوږمیز/ ۱۶۵۷ ز کال کې د کندهار او بلخ په لوري لښکرې و خوزولې او غوښتل یې چې دغه دوه ښارونه فتح کړي، خو ناکام شو.

**اورنګ زیب** هم چې له شاه جهان څخه وروسته د بابریانو د کورنۍ پاچا شو. د افغانانو له نهضت او پاڅون سره مخامخ شو. د دغه پاڅون او نهضت مشري د خوشحال خان خټک په غاړه وه.

دی د پښتو ژبې د نظم او نثر د ډګر ډېر پیاوړی او نامتو شاعر او لیکوال دی. خوشحال خان څلور نیم کاله د اورنګ زیب په زندان کې تېر کړل.

د هند بابریانو د حکومت کمزورتیا د **اورنګ زیب** له زمانې څخه پیل شوه. په ۱۱۲۴ سپوږمیز/ ۱۷۱۲ ز کال کې د دې کورنۍ د حکومتونو لړۍ ختمه شوه. له دې وروسته سیمه ییز حکومتونه د **ګورکانیانو** په نامه په هند کې پاتې شول. که څه هم نوموړې حکومتونه د **نادر شاه افشار** او **ابدالي احمدشاه بابا** له خوا کمزوري شول، خو په پای کې د ګورکانیانو پاتې شوني په **۱۸۳۹**ز کال د بریتانیا د ختیځ هند د کمپنۍ تر ملاتړ لاندې راغلل. د نوموړې کمپنۍ نفوذ د جهانګیر پاچا له زمانې څخه په هند کې پیل شوی و.



بایزید انصاري (پیر روښان)



خوشحال خان خټک

## د کلتور او تمدن څرنګوالی

د **بابریانو** په زمانې کې د هندوستان کلتور او تمدن وغوړېد. فارسي دري د حکومت رسمي ژبه شوه. پرتمین بڼونه، و دانۍ، او ماڼۍ ګانې، لکه **تاج محل** او داسې نور ځایونه آثار رامنځ ته کړای شول، خو **ګورکانیانو** افغانستان ته ډېره پاملرنه نه درلوده، ځکه نو څه د یادونې وړ ارزښتناک او له برمه ډک آثار يې جوړ نه کړل، خو سره له دې ځينې آثار په دې وخت کې منځ ته راغلل. د بېلګې په ډول:



په کابل ښار کې د بابرشاه مقبره

د کندهار په سرپوزې کې د چهل زينې طاق (پیش طاق) چې د بابرشاه په امر جوړ شو، دغه راز په کندهار، د کابل استالف، شمالي او ختیځو برخو کې ځينې بڼونه لکه: د عالم ګنج بڼ، د شهرارا بڼ، دلکشا بڼ، د بابر بڼ، د بګرامي بڼ او د کوکب بڼ جوړ شول.



### په ټولګي کې فعاليت

زده کوونکی دې له نقشې څخه په ګټې اخېستنې سره هغه سيمې وښيي چې هلته د هند د ګورګانيانو آثار پاتې دي.



### پوښتنې

۱. ټولواک بابر چېرته وزېږېد او چېرته خاورته وسپارل شو؟

۲. خوشحال خان خټک په هند کې له کوم مغولي ټولواک سره شخړه درلوده؟

۳. لاندې تش ځايونه په خپلو کتابچو کې ډک کړئ:

بابر شاه په افغانستان کې د ............... په ښار مين و.

بايزيد انصاري (پيرروښان) د افغانانو د ...................... لاربنود وواو د ........................ په ضد يې پاڅون وکړ؟

۴. ټولواک همايون د لاندې يا دو شوو کومو کسانو له خوا ماتې وخوړه او ايران ته يې وتښتيد.

الف: بايزيد انصاري.　　ب: جلال الدين اکبر

ج: کامران ميرزا او خوشحال خان خټک　　د: شيرشاه سوري



### له ټولګي څخه بهر فعاليت

زده کوونکي دې د مشرانو په مرسته په هند کې د بابريانو د آثارو فهرست جوړ او په راتلونکی درسي ساعت کې دې نورو ته ووايي.

# د ايران صفويان



آيا پوهېږئ چې د ايران صفويان، د ازبکو شيبانيانو او د هند د بابريانو پياوړي رقيبان وو؟

**صفويان** په اصل کې **شيخ صفي الدين اردبيلي** ته منسوب دي چې د تصوف له مشايخو او پيرانو څخه و. ده په اتمې پېړۍ کې ژوند کاوه. گورکاني تيمور هم د ده له مريدانو څخه شمېرل کېده.

د صفوي لړۍ د حکومت بنسټ په **ايران** کې **شاه اسماعيل صفوي** کېښود. دی د شيخ صفي الدين اردبيلي له اولادې څخه و. اسماعيل چې کله د خپل حکومت ستنې ټينگې کړې، نو ورسره سم د ازبک **محمد خان شيباني** جگړې ته يې ور ودانگل. شيبانيانو دا مهال د منځنۍ اسيا ډېرې برخې او زموږ د هېواد شمالي او لوېديځې سيمې تر خپلې ولکې لاندې لرلې.

**شاه اسماعيل صفوي** په ۹۱۶ سپوږميز/ **۱۵۱۰** ز کال کې له خپل لښکر سره چې **قزلباش** نومېده، د ازبکانو لښکروته ماتې ورکړه او **محمد خان شيباني** يې وواژه. په دې ډول زموږ د هېواد شمالي او لوېديځې سيمې له **هرات** څخه بيا تر بدخشان پورې د صفويانو تر ولکې لاندې راغلې خو تر پايه د صفويانو په واک کې پاتې نه شوې، ځکه د دغو ځايونو د خلکو د پاڅونونو له امله صفويان شاتگ ته اړ شول. شاه اسماعيل په **۹۳۰** سپوږميز/ ۱۵۲۴ ز کال کې مړشو. له ده څخه وروسته زوی يې **تهماسب** د ايران ټولواک شو. د ده په دورې کې **همايون گورگاني** د ايران دربار ته پناه يوړه.

تهماسب د ده په ملاتړ د قزلباشانو يو لښکر ولېږه او دوی تر کابله د همايون لپاره سيمې ونيولې.

له دې څخه وروسته صفوي لښکر په کندهار کې ځای په ځای شو. د **ايراني صفويانو** او د **هند د**

**بابریانو** ترمنځ د کندهار اداره یوه د اختلاف او شخړې مسئله وه، ځکه دواړو لړیو هغې ته د طمعې سترګې نیولې وې.
د صفوي لړۍ پیاوړي ټولواک **شاه عباس** صفوي و. دی په هرات کې وزیږېد او هم هلته ستر شو. سیاست او اداره یې په هرات کې زده کړه. د شاه عباس تر مړینې وروسته په ۱۰۳۸ سپوږمیز/ ۱۶۲۹ زکال کې د صفوي لړۍ راپرځېدا پیل شوه او د شاه سلطان حسین په مهال کې دغه راپرځېدنه خپلې وروستی پولې ته ورسېده. د هغه په زمانه کې بېلا بېل پاڅونونه رامنځ ته شول. په پای کې له دغو پاڅونونو څخه په یوه پاڅون کې چې په کندهار کې د افغانانو له خوا وشو، صفوي حکومت په ۱۱۳۵ سپوږمیز/ ۱۷۲۲ زکال کې را وپرځېد.



د شیخ لطف الله جومات په اصفهان کې

### په ټولګی کې فعالیت

زده کوونکی دې د نقشې پرمخ کندهار پیدا کړي او د دوو ایراني صفوي او د ګورګاني هند د هېوادونو ترمنځ دې د هغه د موقعیت او ارزښت په اړه خبرې اترې وکړي.

### پوښتنې

۱. د هغو دوو اسلامي لړیو چې له صفوي حکومت سره په یوه مهال کې یې زموږ د هېواد په ګاونډ کې شتون درلود، نوم واخلئ؟
۲. محمد خان شیباني ازبک د چا په مټ ووژل شو؟
۳. صفوي ځواکمن ټولواک څه نوم درلود او چېرته زېږېدلی و؟
۴. لاندې تش ځایونه په خپلو کتابچو کې ډک کړئ:
د کندهار برخلیك د دوو هېوادونو.................... او ................ د شخړې او اختلاف لامل و ځکه هغو دواړو هېوادونو غوښتل کندهار په خپل واک کې ولري.
د صفوي .................... د پاچاهی په زمانې کې ګورګاني همایون د هند پاچا ایران ته تېښته وکړه.



د میرویس نیکه زیارت ځای

# څلورم څپرکی



## د کندهار غور ځنګ (پاڅون)

په لاندې دوو لوستونو شامل دی:

د کندهار د هوتکیانو پاڅون د حاجي میرویس خان نیکه تر مشرۍ لاندې؛

د حاجي میرویس خان هوتک ځایناستي.

# د ځپرکي موخې

۱. په کندهار کې د افغانانو د خپلواکۍ غوښتنې له موخو سره آشنا کېدل،
۲. د حاجي میرویس خان نیکه د خپلواکۍ غوښتنې د خوځښت د رامنځ ته کېدو له زمینو سره د زده کوونکو آشنا کېدل،
۳. د میرویس خان له ځایناستو او هوتکیانو د دورې له پای ته رسېدو سره د زده کوونکو آشنا کول.



د کندهار په ارغنداب کې د بابا حسن ابدال (بابای ولي) مېله ځای

# د کندهار پاڅون



حاجي میرویس خان نیکه

ایا پوهیږئ کله چې په کندهار کې پاڅون او خوځښت رامنځته کېده. زموږ هېواد د ګاونډیو هېوادونو په منځ کې وېشل شوی و؟ آیا خبر یاست چې د کندهار خلکو د حاجي میرویس خان هوتک تر مشرۍ لاندې خپله خاوره د صفویانو له ولکې څخه خلاصه کړه؟

## د هوتکیانو پاڅون

په **کندهار** کې د خلکو د پاڅون پر مهال زموږ هېواد د **ګورګاني هند**، **ایراني صفویانو** او **ماوراءالنهري ازبکانو** ترمنځ وېشل شوی و. همدارنګه د هېواد په ځینو سیمو کې سیمه ییزو واکمنانو د خپل حکومت تږغ غوړولی و. دغه حالت خلک ډېر په تنګ کړي وو او غوښتل یې چې د خپلو ځانونو د خلاصون لپاره یو خوځښت او پاڅون وکړي. په تېره د **کندهار خلک** چې ښار یې په دغو کلونو کې د صفویانو تر اداري لاندې و. دوی له بل هرچا څخه ډېر د پاڅون او خلاصون لپاره تیار شوي وو، ځکه په کندهار کې د صفویانو واکمن **ګرګین** د کندهار پر خلکو ډول ډول ظلمونه کول. د کندهار خلکو د خپل رئیس **حاجي میرویس خان هوتك** تر مشرۍ لاندې چې یو زړور، باتدبیره او هېواد پال مشر و، په آزادي بښوونکو اقداماتو لاس پورې کړ. په تېره بیا کله چې په کندهار کې د صفوي واکمن ګرګین خان له خوا تر نظر او ساتنې لاندې اصفهان ته ولېږل شو، هڅه یې وکړه، ترڅو د افغانانو د خلاصون زمینه برابره کړي، خو هلته یې ونه کړای شو چې خپلې موخې ته ورسېږي، له اصفهان څخه مکې ته ولاړ او هلته یې د ګرګین خان پر خلاف د پاڅون لپاره د علماوو فتوا تر لاسه کړه.

ده کندهار ته له ستنېدو څخه وروسته، د ګرګین خان له حکومت څخه د خلاصون نقشه عملي کړه او

د قومونو او قبايلو په همکارئ سره يې، گرگين او د هغه سرتېري ووژل او په ۱۱۲۰ سپوږميز/ ۱۷۰۸ ز کال کې يې د کندهار خپلواکي اعلان کړه. له دې وروسته په کندهار کې خپلواک **هوتکي حکومت** جوړ شو. حاجي ميرويس خان تر اتو کالو پورې د کندهار مشرتوب په غاړه درلود. د کندهار خلکو د ده تر مشرئ لاندې، د کندهار د بيا نيونې لپاره د اصفهان دربار ټولې هلې ځلې ناکامې کړې.



ميرويس خان نيکه د خبرو کولو په حال کې

### په ټولگي کې فعاليت

د ټولگي زده کوونکي دې په ډله ييزه توگه د کندهار د پاڅون په اړه خبرې اترې وکړي.

### پوښتنې

۱- گرگين څوک و او څه دنده يې لرله؟

۲- حاجي ميرويس خان د څو کلونو لپاره د افغانستان مشري وکړه؟

۳- د افغانستان ډېره برخه د کندهار له پاڅون څخه د مخه په کومو هېوادونو وېشل شوې وه؟ نومونه يې واخلئ.

٤- د افغاني هوتکيانو خپلواک دولت د کوم يوه تن له خوا رامنځ ته شو، مشخص يې کړئ؟

الف- گرگين ب- عبدالعزيز خان ج- حاجي ميرويس خان د- محمود

# د میرویس خان ځای ناستي




آیا پوهیږئ چې د محمود هوتکي تر مشرۍ لاندې افغانانو اصفهان ونیو او صفوي حکومت ته یې د پای ټکی کېښود؟ آیا پوهیږئ چې شاه حسین هوتکي زموږ د هیواد په فرهنگ او ادب باندې له مینو ډولواکانو څخه و؟

## میر عبدالعزیز

د حاجي میرویس خان له مړینې څخه وروسته. د هغه ورور **میر عبدالعزیز** د کندهار د ریاست چارې په لاس کې واخیستې. هغه چې د نرم مزاج خاوند و، غوښتل یې چې د ایران له صفوي دولت سره د سولې او پخلاینې لاره ونیسي، خو دغه سیاست د کندهار د مشرانو د منلو وړ ونه گرځېد، ځکه خو یې میر عبدالعزیز له کاره لرې کړ او د هغه په ځای یې **محمود** د حاجي میرویس خان زوی چې با جرئته او زړور ځوان و، غوره کړ. د میر عبدالعزیز د حکومت دوره دوه کاله وه.



د کندهار د ښار سرپټې بازار

## شاه محمود هوتکي

کله چې په کندهار کې د هوتکیانو له خوا د حکومت د چارو واګې پرمخ ورل کېدې، نو ورسره جوخت ابدالیانو په هرات کې یو خپلواک حکومت رامنځ ته کړی و او تر فراه پورې سیمې یې تر خپلې ولکې لاندې درلودې. که څه هم چې د دغو دوو دولتونو ترمنځ د فراه په سیمه کې په ۱۱۳۲ ز سپوږمیز/ ۱۷۲۰ ز کال کې یوه جګړه وشوه، خو د شاه محمود اصلي موخه د ایران نیول و، ځکه نو پرته له دې څخه چې ځان لا ډېر په هرات کې مصروف کړي، د ایران د نیولو نقشه یې تر لاس لاندې ونیوله.

## په ایران باندې برید


شاه محمود هوتک

شاه محمود هوتکي چې د ایران کورنی اوضاع یې له نژدې څارله، په ۱۱۳۳ سپوږمیز/ ۱۷۲۱ ز کال یې د ایران پر کرمان سیمې برید وکړ، خو د هغه ځای له حاکم سره یې تر سولې وروسته خپلې لښکرې د کندهار په لور و خوځولې. شاه محمود په ۱۱۳۵ سپوږمیز/ ۱۷۲۳ ز کال کې یو ځل بیا خپلې لښکرې د ایران په لور رواني کړې. دا ځلې افغانان په دې بریالي شول چې د ایران پلازمېنه له یوې اوږدې محاصرې وروسته تر خپلې ولکې لاندې راولي. صفوي شاه حسین دې ته اړ شو چې خپل سلطاني تاج د محمود هوتکي پر سر کېږدي.

## په ایران کې د هوتکي دولت جوړول

**د شاه محمود** په سر له تاج ایښودنې سره سم په ایران کې رسماً د **هوتکیانو** حکومت پیل کیږي. ده دوه نیم کاله په اصفهان کې د حکومت د چارو واکې په خپل لاس کې لرلې، خو د دماغي ناروغۍ له امله له کاره گوښه شو او کمه موده وروسته په حق ورسېد. د هغه پر ځای د هغه د تره زوی **شاه اشرف هوتکي** د اصفهان د حکومت چارې په خپل لاس کې واخیستې. ده د خپل حکومت په اوږدو کې د ایران خاوره د گاونډیو هېوادونو له یرغلونو څخه وساتله. شاه اشرف د **عثماني ترکیې** او **روسیې** نقشې بې اغېزې کړې. دغو دواړو هېوادونو غوښتل چې د ایران د خاورې په دننه کې پرمختگ وکړي او یو شمېر سیمې ونیسي، خو د شاه اشرف په تدبیر ټولې نقشې یې شنډې شوې.



شاه اشرف هوتک

## د هوتکي دولت پای


شاه حسین هوتک

په ایران کې د **نادرشاه افشار** په را ښکاره کېدو سره د افغانانو د حکومت کولو چارې له ځینو ستونزو سره مخامخ شوې. له بله پلوه د افغانانو په منځ کې د اختلاف موضوع لا نوره هم پیچلې شوه، ځکه شاه اشرف او نورو افغانانو دا نه ویلله چې له ایران څخه شاه ته تګ وکړي. د همدې شاته تګ په ترڅ کې شاه اشرف د **شورابک** په اړونده سیمه کې ووژل شو. له دې وروسته تر ۱۱۵۱ سپوږمیز/ ۱۷۳۹ میلادي کال پورې د هوتکیانو حکومت په **کندهار** کې محدود پاتې شو او **شاه حسین** د دغه حکومت مشري کوله.

شاه حسین هوتکي فرهنګ پال ټولواک و، په پښتو او دري ژبو به یې شعرونه ویل. نادر شاه افشار د کندهار هوتکي حکومت یې له منځه یووړ.

### په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په ډله ییزه توګه د نقشې پر مخ د اصفهان په لور د افغانانو د خوځښت تګ لوری وښیي.

### پوښتنې

۱. ولې میر عبدالعزیز د افغانانو د مشرانو له خوا په کندهار کې له کاره ایسته کړای شو؟
۲. د ایران پلازمېنه (اصفهان ښار) د چا له خوا فتح شو؟
۳. لاندې تش ځایونه په خپلو کتابچو کې ډک کړئ:
شاه اشرف هوتکي له ایران څخه د دوو ......... او ......... هېوادونو د تېري دفاع وکړه.
۴. ستاسو په اند افغانانو ولې له ایران څخه شاتګ وکړ؟
۵. د میرویس خان د ځایناستي په ډله کې کوم یوه یې له صفویانو سره د پخلاینې لاره غوره کړه؟ مشخص یې کړئ.

الف- محمود هوتکیځ　　ب- میر عبدالعزیز هوتکي
ج- شاه حسین هوتکي　　د- شاه اشرف هوتکي

ولې میر عبدالعزیز د افغانانو د مشرانو له خوا په کندهار کې له کاره ایسته کړای شو؟
۲. د ایران پلازمېنه اصفهان ښار د چا له خوا فتح کړای شو؟



# پنځم څپرکی



## د ګاونډیو هېوادونو تاریخ په منځنیو او نویو پېریو کې

د لاندې لوستونو لړونکی دی:

ایران

هند

روسیه

چین



# د څپرکي موخې

۱.په منځنیو او نویو پېړیو کې د ګاونډیو هېوادونو له عمومي حالت سره د زده کوونکو آشنا کېدل،
۲.د ایران، هند، روسیې او چین هېوادونو د مهمو لړیو او پاچاهانو سره د زده کوونکو آشنا کېدنه؛
۳.په سیمه کې د تاریخي بدلون له ټول بهیر سره د زده کوونکو آشنایي.







## ایران په منځنیو او نویو پېړیو کې



ایا پوهېږئ چې د ایران د تاریخ ډېره برخه زموږ د هېواد له تاریخ سره ورته والی لري؟ ایا پوهېږئ چې په نویو پېړیو کې ایران د اروپایانو د پام وړ وګرځېده؟

د ایران د تاریخ ډېره برخه زموږ د هېواد له تاریخ سره ورته والی لري. هغو پاچاهانو او لړیو چې په افغانستان واکمني کوله، په ایران یې هم واک چلاوه. د اسلام له راتګ سره د دغه هېواد تاریخ هم بدل شو. د ایران لپاره امیران او واکمنان د امویانو او عباسیانو له لوري ټاکل کېدل، خو د ایران په ځینوسیمو کې د پاخونونو له امله ځایي واکمنۍ رامنځته شوې چې د هغوی له جملې څخه لاندېنیو ته اشاره کوو:

۱- د طبرستان علویان

دا ځانګه د په **هاشمي سیدانو** پورې تړلې ده چې د زید د زوی، **سیدحسن** په مشرۍ یې په **۲۵۰** سپوږمیز/ ۸۶۴ ز کې د **ایران په طبرستان** کې یو خپلواک حکومت رامنځ ته کړ. د **علویانو حکومت** تر څلورمې هجري پېړۍ پورې دوام وکړ.

۲- زیاریان

د علویانو له کمزورتیا څخه وروسته **زیاریانو** ځواک تر لاسه کړ او د **طبرستان، ګورګان** او **اصفهان** په ولایتونو یې واکمني وکړه. د **ال زیار حکومت** بنسټ ایښودونکی **مرداویج** نومېده. زیاریان تر ۳۲۰ سپوږمیز/ **۹۳۲** ز کال پورې واکمن پاتې شول.

۳- د بویه کورنۍ

دغه ایراني واکمنۍ په څلورمه هجري پېړۍ کې رامنځ ته شوه او پلازمېنه یې د **اصفهان ښار** و. هغوی د **بغداد د واکمنانو** د کمزورۍ پرمهال د سیاست په ډګر کې را څرګند شول چې له همدې امله یې د بغداد خلافت تر خپل اغېز او نفوذ لاندې راوست.

له پورتنیو دریو لړیو سربېره **غزنویانو**، **سلجوقیانو**، **خوارزم شاهانو**، **مغولانو** او **تیموریانو** هم په ایران واکمني کړې ده.

## ایران په نویو پېړیو کې

### الف- صفویان

د لسمې هجري پېړۍ په پیل (۹۰۷ سپوږمیز/ ۱۵۰۱ ز کال) کې د صفوي دولت منځته راتګ د ایران په نوي تاریخ کې یوه مهمه پېښه وه. صفویانو د ایران سیاسي او ټولنیز کړکېچن حالت پای ته ورساوه او هغه یې یو موټی کړ. د صفوي لړۍ له مهمو پاچاهانو څخه یو هم لومړی شاه عباس و. د هغه د واکمنۍ پرمهال، اصفهان د ایران د پلازمېنې په توګه د خپلې ښکلا او عظمت لوړې پوړۍ ته ورسېد.



په اصفهان کې د امام خمیني ډګر

په صفوي دوره کې له **اروپا** سره د ایران اړیکو نوې بنه پیدا کړه، څکه چې دغه مهال د اروپا او **عثماني ستر واکۍ** اړیکې دښمنانه وې او د ایران او عثماني ستر واکۍ اړیکې هم سړې وې چې له همدې امله اروپایانو له ایران سره تودې اړیکې ټینګې کړې. ایران د اروپایانو له پوځي پوهې ګټه واخیسته او د خپلوسرتېرو په روزنه او د پوځي ځواکونو په مجهزولو کې یې د هغوی له مرستو څخه ګټه واخیسته. صفوي لړۍ چې له اسلام څخه وروسته یې د ایران شهرت لوړې پوړې ته رسولی و، پای ته ورسېده او واکمني یې د افغانانو له خوا ختمه شوه.

## ب ـ افشاریان

پر ایران د افغانانو واکمنی ډېر دوام ونه کړ، څکه **نادر** چې اصلاً د **ترکمنانو** د **افشار** له قبیلې څخه و، یو ځل بیا یې ایرانیان راغونډ کړل. هغه دا ځل په خپلو ځواکونو کې له **افغانانو** او **ازبکانو** هم کار واخیست. د نادر افشار د ځانګړي پوځي سیاست او هلو ځلو په ترڅ کې ایران وکولای شول چې په لږ وخت کې افغانستان، هند او د منځنۍ آسیا ځینې برخې ونیسي، خو د افشاري دولت د بخت ستوری ډېر ژر مړ شو، څکه چې په ۱۱٦۰ سپوږمیز/ ۱۷۴۷ ز کې نادر ووژل شو او په ایران کې ګډوډي پیل شوه.

## ج ـ زندیه

د نادرشاه افشار له وژلو سره په ایران کې کورنۍ جګړه پیل شوه او د نادر قومندانان له یو بل سره ونښتل. د نادرشاه پاتې شونو د ایران **خراسان** د خپلې واکمنۍ لپاره غوره کړ. د ایران په نورو برخو قومندانانو او



د کریم خان زند ماڼۍ

قبایلي مشرانو ولکه ټينګه کړه، خو د دوی په منځ کې **کريم خان زند** تر ټولو ډېر ځواک تر لاسه کړ.
کريم خان د زند له قبيلې څخه و. هغه **قاجاريانو** ته چې د ايران د پاچاهی دعوا يې درلوده، ماتې ورکړه او د **شيراز ښار** يې خپل مرکز وټاکه. هغه مهال **انګريزانو** په ايران کې د خپل اغېز لپاره هڅې کولې. **انګلستان** د کريم خان زند له دولت سره يو تړون لاسليک کړ چې له مخې يې له ايران څخه د **فارس د خليج** په بندرونوکې د سوداګرۍ اجازه تر لاسه کړه.

په ۱۱۹۳سپوږميز/ **۱۷۷۹** ز. کې د کريم خان زند له مړينې سره سم په ايران کې يو ځل بيا کورنۍ جګړې پيل شوې چې په پايله کې د ايران د ځواک يو لوري چې قاجاريان نومېدل، د دغه هېواد چارو واکې تر لاسه کړې او په دې ډول ايران هم په خپل معاصر تاريخ پل کېښود.



د زنديه دورې د معمارۍ هنر يوه بېلګه

## په ټولګي کې فعاليت

زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د هغو لړيو په اړه چې يوازې په ايران کې يې واکمنۍ رامنځ ته کړې او دويمه ډله دې د ايران او افغانستان د ګډو لړيو په اړه بحث وکړي.

## پوښتنې

۱. علويان په کومې اسلامي ډلې پورې تړلي وو او چېرته يې واکمني رامنځته کړه؟
۲. د کريم خان په دوره کې انګريزانو له ايران څخه کوم امتيازات تر لاسه کړل؟ څرګند يې کړئ.
۳. د هغو مشهورو څلورو لړيو نومونه واخلئ چې پر ايران يې واکمني وکړه.
۴. د نادر افشار له وژنې څخه وروسته په لاندېنيو کسانو کې کوم يوه د ايران ځواک تر لاسه کړ؟
الف_ محمدحسن خان قاجار     ب_ کريم خان زند     ج _ مرداويج

# هند په منځنيو او نويو پېړيو کې



د قطب الدين ايبک مقبره

د هند د پراخ هېواد په اړه معلومات لرئ؟ پوهېږئ چې د افغانانو د هلوځلو په ترځ کې په هند کې د اسلام دين ډېره پراختيا موندله؟ پوهېږئ چې افغانانو تر اوږده مهاله پر هند واکمني وکړه؟

هند، پاکستان او بنګله دېش نني درې هېوادونه په تېر وخت کې د هند په يوه نوم يادېدل. په شلمه زېږدېزه پېړۍ کې هغوی له يو بل بېل شول، خو زياتره وخت يې ګډ تاريخ او برخليک درلود. په منځنيو پېړيو کې دغه پراخ هېواد لاهم د ګوپتا لړۍ له لوري اداره کېده. د دغې لړۍ واکمنی د هندوستان په شمال کې تر ۵۵۰ ميلادي پورې شتون درلود. له ګوپتا څخه وروسته د هند په شمال کې ډېرې واکمنۍ رامنځ ته شوې چې تر ټولو ځواکمنه واکمني يې د يفتليانو وه. هغوی په داسې حال کې پنجاب د خپلې واکمنۍ مرکز وټاکه چې د هند په سوېل کې د ګوپتا پاتې شونو خپل ژوند ته دوام ورکاوه. يفتليانو له عربانو او د منځنۍ ختيځ او د آسيا د سوېلي سيمو له وګړو سره راکړه ورکړه او سوداګريزې اړيکې درلودې.

د پاکستان، بنګله دېش او هند جغرافيايي موقعيت




دغو اړيکو د اسلام تر راتګ پورې دوام وکړ. په ۷۱۱ ز

کال کې د لومړي ځل لپاره مسلمانان هند ته ورسېدل او د سند د رود تر غاړو يې سيمې لاندې کړې. دغه سيمې اوس له پاکستان سره تړاو لري. له هغه مهاله (۸ مې پېړۍ) تر يوولسمې ز پېړۍ پورې لوېديځ هند له اسلامي نړۍ سره نژدې اړيکې درلودې. هغه مهال اسلامي مبلغان د هندوانو په منځ کې د اسلام آسماني دين په خپرولو او دودولو بوخت وو.

د لسمې زېږدېزې پېړۍ په وروستيو کې سلطان محمود غزنوي پنجاب ونيوه او په هند کې د اسلام دين نور هم پياوړی شو او هر لوري ته يې ريښې وځغلولې. غوريانو هم په هند واکمني وکړه. غوري سلطان محمد د هند شمال د گنگا سيند ته تر ځېرمه سيمو پورې ونيوه، ډهلی يې هم تر لاسه کړ او خپل ترک غلام، قطب الدين ايبک ته يې وسپاره. غوريانو تر بنگال پورې ولکه درلوده.

د غوري سلطان معزالدين محمد له مړينې وروسته، **۶۰۲** سپوږميز/ ۱۲۰۶ ز کې قطب الدين ايبک ځان د هندوستان خپلواک پاچا وباله او ډهلی يې خپله پلازمېنه کړه چې له همدې امله د هغه پاتې کسان د ډهلي د پاچاهانو په نامه مشهور شول. د ايبک خان ترک له لوري جوړ شوی دولت تر اوږد مهاله په هند واکمني وکړه او ان گورکانی تيمور هم په دې بريالی نه شو چې هغه له پښو وغورځوي. دغه دولت د لسمې زېږدېزې پېړۍ تر وروستيو پورې پر هند واکمن پاتې شو.

## په هندوستان کې د افغاني لوديانو او سوريانو واکمني

لوديان او سوريان اصلاً افغانان دي. پوهېږو چې په هند کې د افغانانو د شتون مخينه لرغونو پېړيو ته رسېږي. هغوی پر هند د مسلمانانو په لښکر ايستلو کې گډون درلود. په هند کې د دغو وگړو په شمېر کې زياتوالی راغی او د دغه هېواد يوه ټولنيزه ډله شوه.



په هند کې د اسلامي هنر د معمارۍ يوه بېلگه

لومړنی افغان چې په هند کې یې واکمني رامنځ ته کړه، **سلطان بهلول لودي** و. هغه په ۸۵۵ سپوږمیز/ ۱۴۵۱ زکال کې د ډهلي حکومت تر لاسه کړ. له بهلول لودي څخه وروسته د هغه زوی سلطان **سکندر لودي** دغې واکمنۍ ته دوام ورکړ، د هغه په واکمنۍ کې افغانان ډېر پیاوړي شول او د اسلام دین هم ډېره پراختیا وموندله، خو د سلطان سکندر لودي د زوی سلطان ابراهیم په واکمنۍ کې په هند کې د افغانانو ترمنځ اختلافات را پیدا شول، ځکه چې هغه یو مغرور او متکبر شخص و. بابر شاه چې د گورکاني تیمور له اولادې څخه و او دغه مهال یې په کابل کې واک تر لاسه کړی و، له دغه حالت څخه گټه واخیسته او پر هند یې یرغل وکړ چې په ترڅ کې یې سلطان ابراهیم او گڼ شمېر افغانان ووژل شول.

د بابر له مړینې څخه وروسته، افغانانو یو ځل بیا د خپلواکۍ غوښتنې خوځښت پیل کړ. دا ځل فریدخان سوري چې د شیرشاه په نامه مشهور و، په ۹٤٦ سپوږمیز/ ۱۵۴۰ زکال کې د بابر د زوی همایون گورکاني ځواکونو ته ماتې ورکړه او ډهلی او اړوندې سیمې یې ونیولې او د هند ډېر ښارونه یې تر لاسه کړل. شیرشاه سوري د پوهې لېوال او یو فرهنگپاله شخص و چې د هند لپاره یې ډېر خدمتونه وکړل او په ۹٥۲ سپوږمیز/ ۱۵۴۵ ز کال کې له منځه ولاړ.


د شاه جهان جومات

له شېرشاه سوري څخه وروسته د هغه زامن د ډهلي پر تخت کېناستل، خو د شېرشاه د دورې نظم او ټیکاو له منځه ولاړ. له واکه گوښه شوي گورکاني واکمن، **همایون** له دغه حالت نه گټه واخیسته او د ایران د صفویانو په مرسته یې لومړی افغانستان او وروسته یې په ۹٦۲ سپوږمیز/ ۱۵۵۵ زکال کې هند تر لاسه کړ چې په دې ډول په هند کې افغاني واکمنۍ هم پای ته ورسېده.

## په هند کې د گورکانیانو واکمني

د هند د مُغولو یا گورکانیانو په اړه مو مخکې هم بحث وکړ. د هغوی په واکمنۍ کې د هند سیاسي یووالی ټینگ شو او دغه هېواد ډېر پرمختگ وکړ.

د هند اکثره ښکلې ودانۍ او آثار په همدغې دورې پورې اړه لري. د اکبر پاچا په وخت کې دغه واکمنۍ د خپلې لوړتیا او پرمختیا لوړې پوړۍ ته ورسېده .هند د یوه ښه اداري نظام څښتن شو او په هېواد کې د مذاهبو او قومونو تر منځ یو ډول یووالی رامنځ ته شو، خو دغه حالت دګورکاني واکمنۍ په وروستیو کې بدلون وموند. د **اورنګزېب** په واکمنۍ (۱۷۰۷-۱۶۵۸ز) کې د دغې لړۍ د کمزورتیا او بې ثباتۍ نښې را څرګندې شوې. هغه خپل پلار زنداني او درې وروڼه یې له کاره ګوښه کړل. د اورنګزېب ځیناستو دګورکاني قلمرو د اداري کولو وړتیا له لاسه ورکړه چې په پایله کې د مسلمانانو، هندوانو او سکانو ځایي څواکونه راپورته شول او هند د وېش په لور روان شو. دغه حالت د اروپایانو په ګټه تمام شو. انګرېزانو په ۱۷۵۷ ز کې د پلاسي په جګړه کې ګورکاني څواکونو ته ماتې ورکړه. د هند د چارو واکې یې تر لاسه کړې او ګورکاني دولت یې د ځان تابع کړ. په دې ډول هند چې د انګرېزانو په منګولو کې راګیر و، په خپل معاصر تاریخ یې پل کېښود.

## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې په هند کې د اسلام د شتون د مخینې په اړه او دویمه ډله دې په هند کې د افغانانو د شتون د مخینې په اړه بحث وکړي او همدا رنګه دې دواړه ډلې په ګډه سره د نقشې پر مخ پنجاب او ډهلی ښکاره کړي او هم دې ووایي چې په منځنیو پېړیو کې دغه ښارونه دافغانستان د کومو پاچاهانو په ولکه کې راغلل ؟

## پوښتنې

۱- په منځنیو پېړیو کې سوېلي هند د آسیا له کومو سیمو سره ډېرې سوداګریزې اړیکې درلودې؟
۲- مسلمانان په کوم کال د لومړي ځل لپاره هند ته ننوتل ؟
۳- لاندې تش ځایونه په خپلو کتابچو کې ډک کړئ.
سلطان محمد غوري په هند کې د...........ښار ونیو او هغه یې...............ته وسپاره.
٤- سم ځواب د(ص)په توري سره په نښه کړئ.
په هند کې دافغانانو دوه مهم پاچاهان عبارت وو له:
الف) قطب الدین ایبک او سلطان بهلول لودي. ب )سلطان محمد غوري او شېرشاه سوري.
ج) سلطان بهلول لودي او شېرشاه سوري. د) سلطان محمود غزنوي او سلطان سکندر لودي.

## له ټولګي بهر فعالیت

زده کوونکي دې په هند کې د لودي او سوري کورنۍ په اړه معلومات تر لاسه کړي او په ټولګي کې دې ولولي.

# روسیه په منځنیو او نویو پېړیو کې



لوی پطر



لویه کاترینه

د روسیې د تاریخ په اړه څه پوهېږئ؟ پوهېږئ چې لوی پطر او لویه کاترینه د روسیې له مهمو واکمنانو څخه وو؟

په نهمه زېږدیزه پېړۍ کې د **نورمن** قومونو چې په **سویډن** کې اوسېدل، د **روسیې** په لور یې یرغل وکړ. هغه مهال په روسیې کې **سلاو** قومونو ابتدایي ژوند درلود. هغوی د سلاویانو ټول قلمرو ونیو. د **کیف** ښار یې د خپل مرکز په توګه وټاکه او ورو ورو یې له ننني **ترکیې** او **عراق** سره سوداګریزې اړیکې ټینګې کړې. **هغوی** د عیسوي **دین** پیروي کوله.

په دیارلسمه زېږدیزه پېړۍ کې روسیه هم د **مغولو** تر بریدونو لاندې راغله. مغول ۲۵۰ کاله په روسیه کې پاتې شول. هغوی **روسي شهزادګان** تر فشار لاندې راوستل او اړ یې کړل چې له خلکو څخه مالیات راغونډ کړي او مغولي خانانو ته یې ولېږي، خو په پای کې د **درېیم ایوان** په نامه د روسیې یوه شهزاده مغولو ته د **مالیې** له ورکړې ډډه وکړه. هغه یو لښکر جوړ کړ او له مغولو یې څو ښارونه ونیول.
ایوان د خپلو واکمنیو لمنه پراخه کړه، کله چې په ۱٤۸٦ ز کال کې مغولو د روسیې خاوره پرېښوده، هغه ټوله روسیه ونیوله. په اوولسمه زېږدیزه پېړۍ کې د روسیې سلطنت د **رومانوف** کورنۍ ته ورسېده.
د همدې کورنۍ په وخت کې روسیې د لوېدیځ (**اروپا**) په لور پرمختګ پیل کړ او ان له لهستان (**پولنډ**) او نورو اروپايي سیمو سره په جګړه کې ښکېل شو.

## د لوی پطر سلطنت

**لوی پطر** د **رومانوف** له کورنۍ څخه و. څنګه چې واک ته ورسېده، غوښتل يې چې روسيې ته بشپړه **اروپايي** بڼه ورکړي چې د همدې موخې لپاره يې اروپايي هېوادونو ته لنډ مهاله سفر وکړ، ترڅو د اروپايانو له **ادابو** او **دودونو** سره اشنايي پيدا کړي. هغه له خپلو خاطراتو سره روسيې ته راستون شو او په يو لړ اصلاحات يې پيل وکړ. هغه په لومړي ګام کې روسانو ته اعلان وکړ چې د اروپايانو په ډول **جامې** واغوندي، **ږيرې** وخريي او خپل کالي **لنډ کړي** بيايې **ښووونځي** او **روغتونونه** ودان کړل.
پطر هغه کسان چې د ده له سياست سره يې مخالفت کاوه **اعدام** او يا هم له هېواد **څخه و ايستل** او ان د خپل سياست په پلي کېدو کې يې د خپلو **زامنو** له وژنې څخه هم ډډه ونه کړه. هغه د روسيې د پراخوالي غوښتنې سياست ته تر هغه دوام وکړ چې روسيه او **سويډن** په جګړه کې راښکېل شول. لوی پطر په يوه نظامي بريد سره سويډن ته ماتې ورکړه. دی له دې پېښې څخه وروسته د روسيې په لوېديځ کې ديوه **نوي ښار** د جوړولو په فکر کې شو. دا مهال دغه ښار د **پترزبورګ** په نامه يادېده.
د اتلسمې پېړۍ په وروستيو کې د روسيې هېواد د ځواک لوړې پوړۍ ته ورسېده. دغه مهال **لويې کاترينې** په روسيې واکمني کوله. هغې خپل ډېر پام پوهې او هنر ته اړولی و او د سترې روسيې هيله يې درلوده چې د همدې موخې لپاره يې د **لهستان** (پولنډ) يوه برخه لاندې کړه. او وريسې يې د ننني ترکيې **دکريمه** ټاپووزمه ترلاسه کړه او **عثماني سلطان** يې اړ کړ چې روسي بېړيو ته اجازه ورکړي چې **تور سمندرګي** ته تګ او راتګ وکړي او هماغه و چې خپلې بېړۍ يې په تور سمندرګي کې ځای په ځای کړې.

### په ټولګي کې فعاليت

زده کوونکي دې په دريو ډلو ووېشل شي، لومړۍ ډله دې د مغولو د يرغل او له روسي شهزادګانو سره د هغوی د سلوک په اړه او دويمه ډله دې د لوی پطر د واکمنۍ په اړه او درېيمه ډله دې د لويې کاترينې د واکمنۍ په اړه بحث وکړي او د هرې ډلې استازي دې پايله په ټولګي کې ولولي.

### پوښتنې

۱.په روسيې باندې د نورمن قوم يرغل او د دوی د سوداګريزو اړيکو په اړه معلومات وړاندې کړئ.
۲.د مغولو او روسي شهزادګانو تر منځ اړيکې څنګه وې؟
۳.اروپا ته د لوی پطر د سفر او اصلاحاتو په اړه خو کرښې معلومات وليکئ.
۴.د روسيې او سويډن جګړه ولې پيل شوه او پايله يې څه وه؟
۵.لويه کاترينه څوک وه؟

# چين په منځنيو او نويو پېړيو کې



د چين ستر ديوال

د چين د تاريخ په اړه څه پوهېږئ؟ پوهېږئ چې چين په منځنيو پېړيو کې د ځانګړي فرهنګ او تمدن لرونکی و او په نويو پېړيو کې د اروپايانو د پام وړ وګرځېده؟ د دې پوښتنې ځواب به په دې لوست کې ترلاسه کړئ.

د **چين** هېواد د منځنيو پېړيو په ټوله دوره کې د روښانه **تمدن** لرونکی و. په دې دوره کې د پاچاهيو څو لړيو د چين په خاورې واکمني وکړه. د هغوی له جملې څخه د **تانګ** (Tang)، **سونګ** (Sung) او **مينګ** (Ming) لړۍ د يادونې وړ دي. د تانګ په واکمنۍ کې چين هر اړخيز پرمختګ وکړ. په تېره بيا علومو او هنر يې ډېره پراختيا وکړه. په دغه دوره کې چين د خپلې پر مختيا لوړې پوړۍ ته ورسېده. د چين ښارونه د **منځنيو پېړيو** له سترو ښارونو څخه وو. د **چانګان** (**شانګهای**) ښار چې د ستروا کۍ پلازمېنه وه، له دوو ميليونو څخه ډېر وګړي يې درلودل. دغه ښار په چټکۍ سره په يوه نړيوال ښار بدل شو. همدارنګه په شمالي چين کې د **پکن** ښار د ډېر ارزښت لرونکی و. په دغه مهال کې د **اروپا** هېڅ يوه ښار د دغو ښارونو په څېر ستروالی نه درلود. دغې لړۍ نژدې ۲۸۸ کاله پر چين واکمني وکړه او وروسته يې خپل ځای د سونګ په نامه لړۍ ته پرېښوده.

د سونګ لړۍ پر مهال د چين هېواد د شمال له لوري د مختلفو اقوامو تر بريدونو لاندې راغی چې تر ټولو مهم يې د **مغولو** يرغل و. مغولو له **مغلستان** څخه د چين پر شمالي پولو بريدونه پيل کړل. د

دیارلسمې زېږدېزې پېړۍ په لومړیو کې مغول په چین کې ځواک ته ورسېدل او نژدې سل کاله یې پر دغه هېواد واکمني وکړه، تر څو د مینګ لړۍ منځ ته راغله.

مینګانو وکولی شول چې د مغولو قوم د چین له خاورې څخه وباسي، د مینګ په دوران کې علومو او هنر ډېره پراختیا ومونده، له **سوېلي** هېوادونو سره د چین د وګړو سوداګرۍ پراختیا وکړه، دغه مهال د چین د هېواد ډېر ګاونډي هېوادونه د **چینايي فرهنګ** تر اغېزې لاندې راغلل، د مینګ لړۍ نژدې **۳۰۰** کاله پر چین واکمني وکړه.

په منځنیو پېړیو کې د چین د هېواد د **وګړو** ډېره برخه کروندګرو جوړوله. هغوی د چین هوارې ځمکې د پرمختللو کرنیزو وسایلو په استفادې سره کرلې، خو له دغو زحمتونو سره سره دغه طبقه ډېره بې وسې وه.

د ځمکو ډېر حاصلات خانانو ترلاسه کول، له بله اړخه وچکالیو هم ځینې وخت دغه طبقه له ستونزو سره مخامخ کوله. هغوی د وچکالیو په راتلو سره خپلې کرل شوې ځمکې پرېښودې او یا یې خرڅولې او اړ وو چې د ښو ځمکو د لاسته راوړلو لپاره له یوې سیمې څخه بلې سیمې ته کډه وکړي او په هغه ځای کې بیا د ځمکو په کرلو اقدام وکړي.



په لرغوني چین کې د ښاري ژوند یوه بېلګه

د چین صنعت‌گرانو په منځنیو پېړیو کې د خپلو تولیداتو غوره نمونې رامنځ ته کړې. هغوی کولای شول چې ډېرې ښې پنبه يي او ورېښمينې ټوټې واوبي او ډېر ښکلي چيني لوښي چې د دې هېواد لرغوني صنعت‌گټل کېږي، جوړ کړي.

په دې دوره کې چینایان بریالي شول چې د لومړي ځل لپاره د چاپ صنعت رامنځ ته کړي او کاغذ، باروت او (قطب نما) لورې معلوموونکی جوړه کړي او نړۍ ته یې وړاندې کړي. په داسې حال کې چې د نړۍ په نورو سیمو کې له دغو نوښتونو څخه څوک خبر نه و. دغه ټول اختراعات څو پېړۍ وروسته په اروپا کې دود شول. د اروپا مشهور گرځندوی **مارکوپولو** د مغولو په واسطه د چین د نیولو پر مهال دې هېواد ته ولاړ او خپل ټاټوبي (**وینز**) ته تر رسېدو وروسته یې د چینایانو د فرهنگ او تمدن په اړه ډېر معلومات د اروپایانو په واک کې ورکړل چې همدغه بیا هند او چین ته د اروپایانو د مهاجرت لامل وگرځېده.

## چین په نویو پېړیو کې

کله چې **پرتگالیانو د افریقا د لویې وچې** له تاوېدو وروسته د ختیځ په لور سمندري لارې کشف کړې، هند ته ورسېدل او له هغه ځایه یې ځانونه چین ته ورسول. هغوی په **۱۵۱۳** زکال کې خپلې سوداگریزې اړیکې له چین هېواد سره ټینگې کړې. دغه وخت د مینگ لړۍ په چین واکمني کوله. د چین حکومت د پرتگالیانو د سوداگرۍ لپاره د **کانټون** (Canton) بندر پرانیسته او هم یې هغوی ته اجازه ورکړه چې **عیسوي تبلیغ کوونکي** خپل فعالیتونه پیل کړي. د پرتگالیانو اړیکو له چین سره دوام درلود چې د اروپایانو نور څواکونه د سوداگرۍ لپاره چین ته ورسېدل.

د مینگ لړۍ په ۱۶۴۴ زکال کې له منځه ولاړه او خپل ځای یې د **منچو لړۍ** ته پرېښوده. منچویانو د چین په شمال ختیځ کې کوچیاني ژوند درلود. هغوی په دې بریالي شول چې د یوې پوځي حملې په ترڅ کې د چین هېواد ونیسي او د مینگ لړۍ له ماتې سره مخامخ کړي. په واقعیت کې هغوی جگړه مار خلک وو. د منچو اشرافو د خپلو جنگیالیو د قربانیو له امله په کلیو کې ډېرې ځمکې لاس ته راوړې. هغوی له کروندگرو سره بې رحمانه چلند کاوه. له بلې خوا منچویانو له اروپایانو په تېره بیا له انگرېزانو سره خپلې اړیکې ټینگې کړې وې. سره له دې چې په دغې مرحله کې د چین هېواد د خپل څواک لوړې پوړۍ ته رسېدلی و، خو دغه حالت د پردیو په تېره د انگلیسانو په وړاندې د ولسي وگړو کرکه ورځ تر بلې ډېروله. سره له دې هم پرتگالیان بریالي شول چې تر درې پېړیو پورې د منچو حکومت سره خپلو اړیکو ته ادامه ورکړي. اروپایان په ځانگړې توگه انگلیسانو وکولای شول چې په دغو درې پېړیو کې له چین څخه ډېره گټه ترلاسه کړي.



د کاغذ له جوړېدو وړاندې د لرګي پر مخ چينايي ليکنه

## په ټولګي کې فعاليت

زده کوونکي دې خپلو ټولګيوالو ته د لوست لنډيز ووايي.

## پوښتنې

۱–په منځنيو پېړيو کې د چين ښارونه څنګه وو؟

۲–په چين کې واک ته د مغولو د رسېدو په اړه معلومات وکړئ.

۳–په منځنيو پېړيو کې د چين د کروندګرو د ټولنيز حالت په اړه ځو کرښې وليکئ.

۴–لاندې تش ځايونه په خپلو کتابچو کې ډک کړئ.

ځای غوښتونکو پرتګاليانو هند ته تر رسېدو وروسته خپل ځانونه .................. ته ورسول. د چين حکومت د پرتګاليانو د سوداګرۍ لپاره د ............... بندر پرانيسته.



# شپږم څپرکی



## د اروپا تاریخ

د لاندې لوستونو لړلیک دی:

۱–په منځنیو پېړیو کې د اروپا عمومي وضع،
۲–صلیبي جګړې،
۳–په اروپا کې رنسانس،
۴–په اروپا کې علمي او فرهنګي بدلونونه،
۵–په اروپا کې ستر انقلابونه.

# د څپرکي موخې

۱-په منځنيو پېړيو کې د اروپا له ټولنيز، اقتصادي او فرهنګي حالت سره د زده کوونکو آشنايي،

۲-له صليبي جګړو سره د زده کوونکو آشنايي،

۳-له رنسانس څخه وروسته د اروپا له حالت سره د زده کوونکو آشنايي،

٤-له رنسانس څخه وروسته له اختراعاتو او علمي او ادبي بدلونونو سره د زده کوونکو آشنايي،

٥-د اروپا له سترو انقلابونو سره د زده کوونکو آشنايي.

# په منځنیو پېړیو کې د اروپا عمومي حالت



د منځنیو پېړیو د یوې کلیسا انځور

ایا د منځنیو پېړیو کلمه مو اورېدلې ده؟ آیا پوهېږئ چې په دغو پېړیو کې د اروپا د خلکو حالت څرګه و؟
منځنیو پېړیو په اروپا کې لس پېړۍ دوام وکړ. دغه دوره د فیوډالېزم د عصر په نامه هم یادیږي. فیوډالېزم یو سیاسي او اقتصادي نظام دی چې پر ډېرې اروپا په تېره بیا په لوېدیځې اروپا یې ولکه درلوده.

## ټولنیز او اقتصادي حالت

له ټولنیزه پلوه په دغه دوره کې کلکه نابرابري واکمنه وه. د اتباعو حقونه نه مراعات کېدل. خلك په دوو طبقو (آربابان او لاس لاندې کسان) وېشل شوي وو. چې کروندګر هم تر لاس لاندې کسانو په ډله کې شامل وو. دغه کروندګران له ځمکو سره یوځای اخیستل او خرڅېدل.

له اقتصادي پلوه د لوړو طبقاتو حالت ډېر ښه و. هغوی مالیات نه ورکول، خو د ټیټو طبقاتو پر خلکو باندې درانده مالیات اېښودل شوي وو.

کروندګرو د اربابانو پر ځمکو باندې کار کاوه، خو د پیداوارو ډېره برخه یې اربابانو لاس ته راوړه او کمه برخه یې کروندګرو ته ورکوله. له دې امله ویلی شو چې د ټولنې د ټیټو طبقاتو حالت خراب و.

له فرهنګي پلوه د منځنیو پېړیو دوره دومره روښانه نه وه. په بشپړه توګه فرهنګي نابرابرۍ دود درلود. یوازې د لوړو طبقو زامنو زده کړو ته لاسرسي درلود. مذهبي زده کړو دود درلود، خو وروسته

غیر مذهبي زده کړې هم دود شوې.

په منځنیو پېړیو کې د زده کړو مرکزونه پراخ شول او په هغو کې د ژبې، گرامر، منطق، موسیقي، حساب، هندسې، نجوم او ریاضي ښوونه پیل شوه. د حقوقو په څانگه کې د **بولوینا** او د طبابت په څانگه کې د **سالرن** پوهنتونونه رامنځ ته شول. په دغه دوره کې د اروپا کابو ټولو هېوادونو د **کاتولیک کلیسا** تابعیت کاوه او مذهب د زیات ارزښت لرونکی و.



په منځنیو پېړیو کې د اروپا د خلکو د ټولنیز ژوند یو انځور

د لومړي ځل لپاره په فلسطین کې مسیحیت د حضرت عیسی عليه السلام په واسطه خپور شو. په **۳۰۰** ز کال کې یې په میلونونو پیروان درلودل. په منځنیو پېړیو کې کلیسا هغه دندې ترسره کولې چې اوس یې دولت په غاړه لري. زیاتره پاپان، پوه او باکفایته سیاست پوهان وو، لکه **لئون کبیر** او **لوی ګریګور** چې په شپړمه زېږدیزې پېړۍ کې اوسېدل.

له **۱۱۹۸** نه تر **۱۲۱۶** ز کال پورې کلیسا د خپل ځواک لوړې مرحلې ته ورسېده او ان خپله اراده یې د فرانسې او انګلستان او د جرمني او روم د امپراتوریو پر پاچاهانو وتپله. له دې معلومېږي چې په منځنیو پېړیو کې مذهب د څومره ارزښت لرونکی و.

## په منځنیو پېړیو کې سیاسي اوضاع

په منځنیو پېړیو کې ګڼ شمېر کورنیو واکمني درلوده چې د بېلګې په توګه د **کارولنژین** د کورنۍ نوم یادولی شو. د دې کورنۍ بنسټ ایښودونکی د **شارل مارتل** په نامه یو غښتلی او باتدبیره شخص و.

هغه د منځنیو پېړیو د پاچاهانو برخلاف د کلیسا ځمکې ضبط کړې او یو مقتدر جنګي ځواک یې رامنځ ته کړ. د دغې کورنۍ د واکمنۍ سیمه **ګول** یا نننۍ فرانسه وه.

د دغې کورنۍ له غښتلو پاچاهانو څخه یو هم **شارلمان** و چې په ۷۶۵ ز کال کې پاچا شو، هغه ډېرې سیمې ترلاسه کړې او کلیسا ته یې ډېر خدمتونه وکړل.



په منځنیو پېړیو کې د اروپا د یوه ښار انځور

شارلمان په ۸۰۰ ز کال کې د ستروا کې امپراطور تاج پر سر کېښود او ځان يې ستروا ک ونوماوه. هغه په خپلو پولو کې برابر قوانين وضع کړل او تل يې د اروپا د بېلابېلو برخو پر يووالي فکر کاوه او د **ملوک الطوايفي** د پراختيا خنډ و.



په اروپا کې د منځنيو پېړيو اړونده کلا

### په ټولګي کې فعاليت

زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د منځنيو پېړيو د ټولنيز حالت په اړه او دويمه ډله دې د اقتصادي حالت په اړه معلومات وړاندې کړي.

### پوښتنې

۱–په منځنيو پېړيو کې له ټولنيزه پلوه خلک په څو طبقو وېشل شوي وو؟

۲–په منځنيو پېړيو کې پاپانو کوم واکې درلود؟

۳–لاندې تش ځايونه په خپلو کتابچو کې ډک کړئ.

د کارولنژين کورنۍ بنسټ ايښودونکی ........................... و.

### د ټولګي د باندې فعاليت

په منځنيو پېړيو کې په افغانستان کې کومو واکمنيو شتون درلود؟ نومونه دې وليکئ.

# صليبي جګړې


صليبي جګړې

آيا پوهېږئ چې صليب څه شی دی او صليبي جګړه څه معنا لري؟

صليب د عيسويانو سپېڅلې نښه ده. د هغوی په باور دغه نښه (صليب) د حضرت عيسیعليه‌السلام د شهادت ښکارونديې کوي چې له همدې امله يې په خپلو کليساګانو کې کاروي.

په تېر لوست کې مو ولوستل چې مسيحيت په چټکۍ سره په اروپا کې خپور شو او ډېرو خلکو دغه دين ته مخه وکړه. دغه مهال يوازې هسپانيا د مسلمانانو په ولکه کې وه.

په ۱۱ زېږدېزې پېړۍ کې د مسلمانانو او اروپايانو ترمنځ صليبي جګړې پيښې شوې. په دغو جګړو کې د اروپايانو پر جامو د صليب نښې وې چې له همدې امله صليبي جګړې بلل کېږي، خو ولې دغه جګړې پېښې شوې؟

۱- د عيسويانو په اند، ختيځ يعنې د شتمنۍ سرچينه او هغوی فکر کاوه چې پر ختيځ د بريدونو په ترځ کې به ډېره شتمني ترلاسه کړي.

۲- ايټالوي سوداګر لېوال وو چې په نژدې ختيځ کې د عيسوي دولتونو تر نظر لاندې سوداګريز مرکزونه رامنځ ته کړي او له دې لارې له لرې ختيځ سره خپله سوداګري پيل کړي.

۳-د اشرافو تر یرغل لاندې کروندګرو فکر کاوه چې په صلیبي جګړو کې له ګډون او اروپا ته تر ګرځېدو وروسته به ښه ژوند ولري.

**د صلیبي جګړو پایلې**

د تاریخ په اوږدو کې اته صلیبي جګړې پېښې شوي دي چې لومړۍ جګړه په ۱۰۹۵ ز کال او وروستۍ یې په ۱۲۷۰ ز کال کې پېښه شوې چې لاندې پایلې یې لرلې دي:

۱-په دغو جګړو کې زیاتره اشراف ووژل شول او کروندګرو یوځل بیا خپلواکي ترلاسه کړه چې له امله یې د فیوډالېزم نظام هم کمزوری شو.

۲-د لوېدیځ او ختیځ تر منځ سوداګرۍ پراختیا وموندله، ځکه چې د صلیبي جګړو ګډونوالو له ختیځ څخه نوي کالي لکه وربښمین توکي، خوراکي توکي او ډول ډول درمل له ځان سره یووړل.

۳-ښارونو پراختیا او پرمختګ وکړ.



د صلیبي جګړو یو انځور

٤-د یونان او روم ادبیات چې د ډېر وخت لپاره هېر شوي وو، یوځل بیا د ختیځ له لارې اروپا ته یووړل شول او همدارنګه اروپایان د مسلمانانو له علومو او فنونو سره آشنا شول.

٥- د اسلامي تمدن ډېرې پدیدې او علوم، له هغې جملې څخه د مسلمانانو په سلګونو زره کتابونه یې له ځانه سره یووړل چې تر ننه پورې د لوېدیځ په کتابتونونو کې شته.

٦- په شام، ترکیې او مصر کې په سلګونو زره مسلمانان یې قتل عام کړل.

### په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د صلیبي جګړو د پېښېدو د لاملونو په اړه او دویمه ډله دې د صلیبي جګړو د پایلو په اړه معلومات ورکړي.

### پوښتنې

۱–څو ځلې صلیبي جګړې پېښې شوې دي؟

۲–د کومو پېړیو ترمنځ مسیحیت د پرمختګ په حال کې و؟

# د اروپا رنسانس



د رنسانس د دورې د معماري هنر یوه بیلګه

رنسانس په لغت کې د فرهنګ او علومو بیا پیدایښت ته ویل کېږي.

د علومو او فرهنګ په برخه کې دغه بدلونونه له ۱۴ مې څخه تر ۱۶ مې زېږدیزې پېړۍ پورې رامنځ ته شول. په **اروپا** کې رنسانس ورو ورو او په تدریجي توګه ترسره شو او د اروپا څېرې ته یې بدلون ورکړ. په دې دوره کې پوهانو خلکو ته د لرغوني یونان او روم د فرهنګ تبلیغ کاوه.

له رنسانس څخه وړاندې د اروپا خلکو تر ډېره روحي مسایلو ته پام کاوه او مادیاتو ته یې پام نه درلود، خو د رنسانس په دوره کې د نړۍ چارو ته هم ځیر شول. هنرمندانو او پوهانو نوې نظریات وړاندې کړل. د چاپ ماشین اختراع شو. سوداګرۍ او کسبونو پراختیا وموندله. ښاري ژوند پیل شو او د اربابانو ځواک د کمزورتیا په لور روان شو.

## د ښاري ژوند پراختیا

ښارونو تر ډېره په ساحلي سیمو کې پراختیا وموندله، ځکه چې په دغو ځایونو کې کروندګر او فیوډالان لږ وو. د بندري ښارونو پراختیا لومړۍ په **ایټالیا** او وروسته په **المان** کې پیل شوه او د خلکو شمېر هم زیات شو. په دغه دوره کې د یوه منځني ښار د وګړو شمېر پنځه زره تنو او د سترو ښارونو د وګړو شمېر شل زره تنو ته رسېده. د ښار دننه منظره تل د بدلون په حال کې وه، فیوډالان له دغه

حالت څخه ناخوښي وو، خو د مقابلې وس يې نه درلوده.

پاچاهانو له فيوډالانو څخه غوښتل چې ماليه ورکړي. **سوداګري** او **بانکداري** په نوې بڼه پيل شوه، چې دغه حالت د ښارونو اقتصاد پياوړی کړ.

## د پاچاهانو د ځواک زياتوالی

د ښارونو له جوړېدو او ښاري ژوند څخه وروسته د پاچاهانو ځواک هم ډېر شو. پاچاهانو له فيوډالانو څخه ماليات اخيستل او د خپل ځواکمنتوب لپاره يې ورڅخه ګټه اخيستله.

پاچاهانو ډېر شمېر سرتيري وګمارل او يو تلپاتې پياوړی پوځي ځواک يې برابر کړ وسلې او توپونه يې له جوړ کړل. همدغه مهال د کليسا ځواک يو څه محدود شو او د حکومت په چارو کې د لاسوهنې اجازه نه ورکول کېده.

کليساګانو ورو ورو د ماليې اخيستلو، **سکالرشيپ** ورکولو او د ښوونې او روزنې ورکولو حق له لاسه ورکړ. د رنسانس په دوره کې اروپايي هېوادونه له ډېرو بدلونونو سره مخامخ شول. هېڅ يوه هېواد خپل اوسنی حالت نه درلود.

د انګلستان په هېواد کې فيوډالانو او ځواکمنو اشرافو په پارلمان (ولسي جرګه) کې شتون پيدا کړ او يو مشروطه سلطنتي حکومت يې رامنځ ته کړ. د فرانسې پاچاهان لېوال وو چې د فيوډالانو ځواک کمزوری او په پای کې يې له منځه يوسي. هغوی د حکومت لپاره يو مرکز جوړ کړ او د پاريس ښار يې مرکز وټاکه چې له همدې امله سخته جګړه پېښه شوه.


د رنسانس د دورې د معمارۍ د هنر يوه بېلګه

له دې ټولو سره سره، د فرانسې او انګلستان خلکو خپل ملت ته تر هر شي ډېر درناوی درلود. په هسپانيا کې يو بل ډول بدلونونه راغلي وو. د هسپانيا شمالي ولايتونه د عيسوي پاچاهانو او سوېلي برخې يې د مسلمانانو په لاس کې وې چې د اروپايانو او مسلمانانو ترمنځ جګړې پېښې شوې او په پايله کې ملوک الطوايفي له منځه ولاړه.

ځينو سيمو چې يووالی نه درلود، خلک يې تل له يو بل سره په جګړه کې ښکېل وو. او غوښتل يې چې د بېلو او خپلواکو کوچنيو دولتونو په توګه ژوند وکړي.

### په ټولګي کې فعاليت

زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې له رنسانس څخه وروسته د خلکو د ژوند په اړه او دويمه ډله دې د ښاري ژوند او د نوو ودان شويو ښارونو په اړه معلومات وړاندې کړي.

### پوښتنې

۱- په اروپايي ټولنه کې له رنسانس څخه وروسته کوم بدلونونه منځ ته راغلل؟
۲- په هسپانيا کې ملوك الطوايفي نظام څرنګه له منځه ولاړ؟

# په پوهه، ادب او فرهنګ کې بدلونونه


د ټلسکوپ انځور

آيا پوهېږئ چې له رنسانس څخه وروسته په پوهه، ادب او فرهنګ کې کوم بدلونونه راښکاره شول؟

په منځنيو پېړيو کې د اروپا خلکو دنيوي کارونو ته لږ پام درلوده، خو د رنسانس په دوره کې د اروپا خلك ورو ورو ژوند او نړۍ ته ځير شول. په بېلابېلو څانګو کې پوهان، ليکوالان او هنرمندان راښکاره شول چې تراوسه يې آثار پر ځای پاتې دي.

**ژان ژاک روسو**، **مونتسکو** او **ولتر** د دې دورې له وتلو ليکوالانو څخه و. همدارنګه د انځورګرانو او مجسمه جوړوونکو له ډلې څخه د **ميکل انژ** او **ليوناردو داوينچي** نومونه يادولی شو. د ادبياتو په برخه کې بايد ووايو چې د ژبې ګرامر او لغت ډېر ارزښت پيدا کړ او همدارنګه خلك د حقوقو د علم په مقرراتو پوه شول. د رنسانس په دوره کې له کليسا څخه د باندې ښوونځي جوړ شول، د انسان د بدن په اړه مطالعه پيل شوه او په طب او طبابت کې پرمختګ رامنځ ته شو.

له پوهانو څخه يو تن، ويليم هاروي، د انسان په بدن کې د وينې د ګرځېدو په اړه څېړنې وکړې. د نجومو او جغرافيې په څانګو کې هم د پام وړ پرمختګ وشو. الماني **ګوټنبرګ** د چاپ ماشين او **ګاليله** تلسکوپ اختراع کړل.

د اووه لسمې پېړۍ په وروستيو کې د لومړي ځل لپاره د بخار ماشين وکارول شو. او هم يو

ډول درانده ټوپک جوړ شول چې د ویشتلو په وخت کې په ځانګړو پایو کېښودل کېدل.

اروپایانو د نوو ترلاسه شوو جغرافیایي اطلاعاتو په لاسته راوړلو سره وکولای شول چې د افریقا سوېلي برخو او امریکا ته سفر وکړي او حتی د ځمکو په غاړو کې په سمندري چلند لاس پورې کړي. د لوري معلوموونکی (قطب نما) په جوړېدو سره هغوی بریالي شول چې په خپلو مسافرتونو کې اسانتیا رامنځ ته کړي. چین ته د **مارکوپولو** سفر د اروپایانو د جغرافیایي پوهې له پراختیا سره ډېره مرسته وکړه.

کله چې د جغرافیې په اړه انسانانو زیات معلومات ترلاسه کړل. ورو ورو یې ډېرې ښې نقشې جوړې کړې چې ورسره د اروپایانو معلومات هم د لارو، ځمکو او سمندرونو په اړه بشپړ شو.


د ماري اوروا ولټېر انځور


د ژان ژاک روسو انځور

## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د رنسانس دورې د اختراعاتو د ګټو په اړه او دویمه ډله دې د ښوونځیو له جوړېدو څخه وړاندې د پوهې او زده کړې د مرکزونو په اړه معلومات وړاندې کړي.

## پوښتنې

۱–د رنسانس په دوره کې په انسانانو کې کوم نوی احساس رامنځ ته شو؟

۲–د دې دورې دوه نومیالي لیکوالان راوپېژنئ.

۳–د رنسانس په دوره کې اروپایانو د طب او طبابت په برخه کې کومې لاس ته راوړنې درلودې؟

## د ټولګي د باندې فعالیت

زده کوونکي دې د خپلې کورنۍ د مشرانو په مرسته د چاپ د ماشین او تلسکوپ د ګټو په اړه معلومات ولیکي او په ټولګي کې دې ولولي.

# په اروپا کې لوی انقلابونه


د بخار ماشين

آيا پوهېږئ چې صنعتي انقلاب څه ته وايي؟

## د انګلستان صنعتي انقلاب

د صنعت په برخه کې بدلون يا په بل عبارت په پرمختللو هېوادونو کې هغه بدلون چې د صنعتي ماشينونو د کارولو په ترڅ کې رامنځ ته شوی، **صنعتي انقلاب** بلل کېږي.

د اتلسمې پېړۍ په دويمې نيمايي کې په **برتانيا** کې چې د صنعتي انقلاب کومې نښې ليدل کېدې، په صنعتي انقلاب بدلې شوې.


د ټوکر اوبدلو د ماشين انځور

دغه انقلاب تر ۱۸۵۰ ز کال پورې لويه برتانيا د نړۍ تر ټولو بډايه هېواد کړ، خو په برتانيا کې د صنعتي انقلاب لوی لامل د کرنيز انقلاب برياليتوب و. د کرنې او مالدارۍ په برخه کې بدلون د دې لامل شو چې د خوراکي توکو په توليد کې د پام وړ زياتوالی راشي او خلکو ته ارزانه او پريمانه خوراکي توکي په لاس ورشي. چې په دې اساس خلکو ته د صنعتي کاليو د اخيستلو زمينه برابره شوه.

د **جيمز واټ** په واسطه د **بخار د ماشين** اختراع په دغه انقلاب کې مهم رول ولوباوه. د بخار ماشين له اختراع او ګټې اخيستنې وروسته، د اوسپنې د ويلې کېدو نوې لارې هم رامنځ ته شوې. د نساجي



لندن، د بیگبین ساعت

صنعت هم د صنعتي انقلاب پر لور یو ګام و.

د صنعت وده چې لومړی په برتانیا کې پیل شوه، د نولسمې پېړۍ په بېلا بېلو کلونو کې په چټکۍ سره د اروپا نورو هېوادونو او امریکا ته پراختیا وکړه. له ۱۸۵۰ ز کال وروسته دغه وده د اروپا په نورو هېوادونو، لکه: بلژیک، فرانسې او المان کې رامنځ ته شوه. په دغو هېوادونو کې هم نساجي رول ولوباوه. د انګلستان د صنعتي انقلاب په اړه چې پوه شو اوس راځئ چې وپوهېږو چې د فرانسې لوی انقلاب څرنګه رامنځ ته شو؟

## د فرانسې لوی انقلاب

د فرانسې لوی انقلاب په ۱۷۸۹ ز کال کې رامنځ ته شو. له انقلاب څخه وړاندې د فرانسې د خلکو حالت له ځینو لوریو د ټولو اروپایانو په پرتله یو څه ښه و، خو له دې سربېره ظلم او استبداد د فرانسې د واکمنیو له ځانګړنو څخه وو. د طبقاتو ترمنځ توپیر و او اقتصادي حالت هم خراب و چې په پایله کې یې یوشمېر پوهان، لکه: **مونتیسکو، ولتېر، ژان ژاک روسو، دیدرو** او **ادام اسمیت** اړ شول چې د ټولنې پر وضعیت باندې نیوکې وکړي. د دولتي خزانې کمبدل او اقتصادي ماتې هم د انقلاب د راتلو یو لامل و. شپاړسم لویي نشوای کولای چې د خلکو اداره وکړي.



د فرانسې د لوی انقلاب انځور

د ټولنې د ټیټې یا درېمې طبقې خلک سره راغونډ شول او د دې پر ځای چې د لوړو طبقاتو استازو سره یوځای شي، په خپله یې یو مجلس جوړ کړ او **ملي مجلس** یې وباله او ژمنه یې وکړه چې تر هغه به سره بېل نه شي، ترڅو فرانسه د اساسي قانون خښتنه نه کړي. خو شور او زوږ پیدا شو چې پاچا غوارې چې د دوی مجلس له منځه یوسي. له همدې امله خلکو په بلوا لاس پورې کړ او د ۱۷۸۹ ز کال د جنورۍ په ۱٤مه یې د **باستیلي** په زندان برید وکړ او زندانیان یې ازاد کړل.



د انقلاب کوونکو له لوري د باستیل زندان کلابندي

شپاړسم لویي او د هغه مېرمنې ماري انتونت له فرانسې څخه د تېښتې هڅه وکړه، خو مخنیوی یې وشو. چې په پای کې یې خلکو سلب اعتماد کړل.

د فرانسې د انقلاب اغېزې نه یوازې په فرانسه کې، بلکې د اروپا په زیاترو هېوادونو کې لیدل کېدې چې له همدې امله دغه انقلاب ته لوی انقلاب وایي.

### په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د صنعتي انقلاب د ګټو په اړه او دویمه ډله دې د فرانسې حکومت د ځانګړنو په اړه خبرې اترې وکړي.

### پوښتنې

۱. د بخار ماشین د چا په واسطه اختراع شو؟
۲. صنعتي انقلاب له انګلستان څخه وروسته په کومو ځایونو کې رامنځ ته شو؟
۳. په فرانسه کې ملي مجلس څنګه جوړ شو؟ روښانه یې کړئ.




# اووم څپرکی



## د امریکا تاریخ

دغه سرلیک لاندې درسونو لرونکی دی:

١. د مایا (Maya) تمدن،
٢. د ازتک (Aztec) تمدن،
٣. د اینکا (Aeenka) تمدن،
٤. د امریکا موندل او د مهاجرتونو پیل،
٥. د امریکا د متحده ایالتونو خپلواکي.

# د څپرکي موخې

۱. زده کوونکي به له آسيا څخه امريکا ته د خلکو له لېږد سره آشنا شي،
۲. د امريکا له بومي خلکو سره به آشنا شي،
۳. په مرکزي امريکا کې به د مايا له تمدن سره آشنا شي،
۴. د ازتک تمدن د رامنځ ته کېدو په څرنګوالي به وپوهېږي،
۵. په سوېلي امريکا کې به د اينکا له تمدن سره آشنا شي،
۶. د امريکا له کشف او د مهاجرتونو له پيل سره به آشنا شي،
۷. بايد وپوهېږي چې اروپايانو نوې نړۍ (امريکا) ته ولې مهاجرت وکړ،
۸. د امريکا د متحده ايالتونو د خپلواکۍ له مراحلو سره به آشنا شي.

## د مایا تمدن څرنګه منځته راغی؟




په دې لوست کې له اسیا څخه امریکا ته د هغو قومونو له لېږد سره اشنا کېږئ چې په مرکزي امریکا کې یې د مایا په نامه د لومړني تمدن بنسټ کېښود.

مخکې له دې چې انسانان کرنې ته مخه کړي، د خپلو خوراکي توکو اړتیا یې د وحشي ژویو د ښکار او د مېوو راغونډولو له لارې پوره کوله. هغوی د خوراکي توکو د لاس ته راوړلو لپاره اړ وو چې له یوې سیمې څخه بلې سیمې ته مهاجرت وکړي او شتمنې ځمکې پیدا کړي. د دغو مهاجرو له جملې څخه یو هم د **مایا** قوم و. د آسیا د شمال ختیځ کې یوشمېر قومونو امریکا ته مهاجرت وکړ. هغوی د ځینو ځانګړتیاوو او ظاهري ورته والي له مخې مغول توکمه وو چې ډېر پخوا یې په تدریجي توګه له آسیا څخه مهاجرت پیل کړ. له دې امله چې سمندر کنګل و د **الاسکا** له لارې شمالي امریکا ته ننوتل. څه موده وروسته د هغوی یوې ډلې شمالي امریکا پرېښوده او د سوېلي سیمو په لور وخوځېدل.

د **مایا** قومونو چې شل قبیلې یې درلودې، د مرکزي امریکا په ټولو سیمو کې یې ژوند کاوه. له میلاده شاو خوا ۶۱۳ کاله وړاندې د مایا د قبیلو د ژوند په ډول کې یو ستر بدلون رامنځ ته شو. لومړنی ژوند یې پرېښود، کرنیز ژوند ته یې مخه کړه او ورو ورو یې د یوه تمدن بنسټ کېښود.

د مایا خلکو د کرنې په چارو کې پرمختګ وکړ او له شمالي امریکا سره یې په خپلې سوداګریزې اړیکې ټینګې کړې، خو په مرکزي امریکا کې د وچکالۍ له راتګ سره د مایا قومونه اړ شول چې شمالي سیمو ته مهاجرت وکړي. هلته یې یوځل بیا د ښارونو، کورونو، عبادت ځایونو او اهرامونو په جوړولو پیل وکړ. د مایا وګړو له بېلا بېلو علومو، لکه **ستوري پېژندنې** سره آشنايي درلوده او **کلیزه** یې هم جوړه کړې وه. د مایا په قبیله کې کاهنانو (مذهبي لارښوونکو) ډېر رول درلوده. هغوی په ستوري پېژندنه پوهېدل چې له همدې امله یې په خلکو کې ډېر درناوی کېده. د مایا تمدن ډېر آثار پاتې دي چې د هغو له جملې کولی شو چې د **یوکاتان** په ټاپو وزمه کې د (**الکاستون**) اهرام ته اشاره وکړو.



لکه څنګه چې په انځور کې لیدل کېږي، الکاستون هرم ۲۳ متره لوړوالی لري او د هنري معمارۍ ډېر ارزښت لري چې هر کال یې په زرګونو نړیوال سیلانیان لیدنه کوي.

## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په دریو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې له آسیا څخه امریکا ته د مهاجرت په اړه، دویمه ډله دې د مایا تمدن د رامنځ ته کېدو د څرنګوالي په اړه او دریمه ډله دې د مایا د فرهنګ او معمارۍ په اړه خبرې اترې وکړي او د هرې ډلې استازی دې پایله په ټولګي کې وړاندې کړي.

### پوښتنې

۱.د مایا قومونو څرنګه شمالي امریکا ته مهاجرت وکړ؟
۲.په مرکزي امریکا کې د مایایانو د ژوند د ډول په اړه څو کرښې ولیکئ.
۳.د الکاستون د اهرام په اړه څه پوهېږئ؟

## د ازتکانو تمدن په کوم ځای کې رامنځته شو؟



په تېر لوست کې له آسیا څخه امریکا ته د خلکو له مهاجرت او په مرکزي امریکا کې د مایا تمدن له منځه راتلو سره اشنا شوئ. په دې لوست کې د ازتک تمدن سره چې د مایا پر ځای رامنځته شو، آشنا کیږئ.

د مرکزي امریکا پخوانیو لومړنیو وګړو شل قبیلې درلودې. له دغو قبیلو یو قوم چې په **مکسیکو** کې مېشت و، **ازتک** نومېده. دغه قوم په زړورتوب او جګړه ماری مشهور و. د څوارلسمې زېږدېزې پېړۍ په لومړیو کې ازتکانو د مایا د واک ټوله سیمه ونیوله چې وروسته د ازتکانو ستر واکې د **مرکزي امریکا** ټولې سیمې په ځانګړې توګه مکسیکو په ولکه کې درلوده.

د هنر، معمارۍ، نجومو او ریاضیاتو په علم کې پرمختګ د ازتکانو د تمدن مهمې لاسته راوړنې وې. د دوی لیک د انځوریز لیک یو ډول و. ځینو ازتکانو په غوږونو کې د وزن په اچولو سره د خپلو غوږونو نرمۍ اوږدولې، ځکه چې د غوږونو د نرمیو اوږدوالی د نجیب زادګۍ نښه وه. کاهنانو د ازتکانو په ټولنه کې د مایایانو په څېر مهم رول درلوده. ازتکان هوښیار او ځیرک خلک وو. هغوی له سوېلي امریکا سره خپلې اړیکې ټینګې کړې وې او د لاسي او هنري صنایعو تولیدات یې د **سوېلي امریکا** سیمو ته صادرول.

د ازتکانو ستروا‌کۍ ۲۰۰ کاله دوام وکړ. له جغرافيايي موندنو وروسته، هسپانويان د ازتکانو سيمې ته ننوتل او هغه ځای يې ونيو. د ازتکانو تاريخي آثار د انځوريزو توکو په بڼه موجود وو چې د اروپايانو له لوري له منځه يوړل شول، ځکه چې د هغوی د مذهبي سليقې او د تفکر له طرز سره يې مطابقت نه درلود.


د ازتک د اوبړدو غوړو مجسمو انځور

د ازتکانو پلازمېنه چې د ستروا‌کۍ يو مهم ښار و، له خاورو سره برابره شو او پر ځای يې هسپانويانو يوه ستره کليسا ودانه کړه.

د اروپايانو د بريدونو په پايله کې د ازتکانو ټول ادبيات له منځه ولاړل. له هغوی څخه يوازې درې کتابونه پاتې دي چې تر دې مهاله يې څوک په لوستلو نه دي بريالي شوي.

### په ټولګي کې فعاليت

زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د واک ته د ازتکانو د رسېدو په اړه او دويمه ډله دې د ازتکانو د تمدن د لاسته راوړنو په اړه خبرې اترې وکړي او د هرې ډلې استازی دې د بحث پايله په ټولګي کې ولولي.

### پوښتنې

۱. د مايايانو سيمه کومو وګړو ونيوله؟

۲. ازتکانو له کومو سيمو سره سوداګريزې اړيکې ټينګې کړې وې؟

۳. د ازتکانو ستروا‌کۍ د چا په واسطه او څرنګه له منځه ولاړه؟

### د ټولګي دباندې فعاليت

د ازتکانو د تمدن په اړه يو مطلب وليکئ.

# د اینکا تمدن څرنګه تمدن و؟



په تېر لوست کې مو د ازتکانو په اړه موضوعات ولوستل. اوس د اینکا له قومونو سره چې په سوېلي امریکا کې یې د یو ستر تمدن بنسټ ایښی و، آشنا کېږئ.

له آسیا څخه امریکا ته چې کومو خلکو مهاجرت کړی و، په دغه ځای کې یې د تمدن درې عمده مرکزونه رامنځ ته کړل چې له **مکسیکو**، **مرکزي امریکا** او **پیرو** څخه عبارت دي.

اینکا هم د آسیا له مهاجرو قومونو څخه و. هغوی له آسیا څخه د **الاسکا** له لارې د سوېلي امریکا سیمو ته ځانونه ورسول. د اینکا امپراتوري قلمرو د سوېلي امریکا ټولې لوېدیځې څنډې په بر کې نیولې چې په شمال کې تر **اکوادور** او په سوېل کې تر **چیلي** پورې رسېدې.

د اینکا تمدن په **دولسمه** زېږدېزه پېړۍ کې پیل شو. د ازتکانو په خلاف اینکایان په دې بریالي شول چې یوه متحده او یو موټی ټولنه جوړه کړي. سیاسي ځواک په بشپړه توګه د پاچا په لاس کې و. د اینکا پاچا د مذهبي کاهنانو په مرسته په خپل قلمرو کې واک په تیزۍ سره چلاوه او ځان یې د خدای زوی او استازی باله. خلکو په خپله هېڅ واک نه درلوده او د مذهبي کاهنانو او پاچا تر امرونو لاندې یې ژوند کاوه.

اینکایان د نجوم او ریاضیاتو په علم کې له ازتکانو څخه وروسته پاتې وو، خو په مهندسۍ، معمارۍ

او لاسي صنايعو کې مخ وړاندې ووو. د هغوی په واسطه جوړ شوي واټونه او ودانۍ د **ازتکانو** په پرتله ډېرې ښې وې. د هغوی لیک یو ډول انځوریز و. اینکا خپلې سوداګریزې اړیکې له شمالي سیمو په ځانګړې توګه د ازتکانو له سترواکۍ سره ټینګې کړې وې. هغوی د خپلو لاسي صنایعو تولیدات د **ازتکانو** سترواکۍ ته صادرول. د مرکزي امریکا غلې او د حبوباتو تخمونه په ډېر مقدار سره سوېلي امریکا ته رسول کېدل او هلته کرل کېدل. سره له دې چې **هسپانویانو** د اینکا تمدن ویجاړ کړ او سترواکۍ یې له منځه یوړه، خو لا تراوسه د دغه تمدن ډېر آثار پاتې دي، لکه ښکلې د سرو زرو او سپینوزرو توکي او د اوبو رسولو کانالونه. دغه کانالونه د **انديز** (Andes) د غرونو په لمنو کې د اوبه خور لپاره جوړ شوي وو. له دې سربېره په **کوزکو** کې هم ستر استوګنځایونه او کلاوې شتون لري چې د دوی په واسطه جوړې شوې دي.



د اینکا کلیزه

## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د سوېلي امریکا د پخوانیو لومړنیو خلکو په اړه او دویمه ډله دې د اینکا د واک لاندې سیمو په اړه بحث وکړي او د هرې ډلې استازی دې پایله خپلو ټولګیوالو ته ووایي.

## پوښتنې

۱.د امریکا په لویه وچه کې څو تمدنونه او په کومو سیمو کې جوړ شوي وو؟
۲.د نقشې پر مخ د اینکا د سترواکۍ قلمرو سیمه وښایاست.
۳.له سیاسي پلوه د اینکا تمدن د ازتک له تمدن سره څه توپیر درلود؟
٤.د اینکا د پاتې شویو آثارو په اړه معلومات ورکړئ.

## د ټولګي دباندې فعالیت

د لوست مهم ټکي په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

## د امریکا کشف او د مهاجرتونو پیل څرنګه ترسره شو؟



تاسو د امریکا د پخوانیو لومړنیو وګړو د ژوند په اړه موضوعات ولوستل. په دې لوست کې د امریکا د وچه له موندلو او هغه ځای ته د اروپایانو د مهاجرت پیل او د امریکا له بومي خلکو سره د هغوی له سلوک سره اشنا کیږئ.

د امریکا وچه د ۱۴۹۲ زیږدیز کال په اکتوبر کې د هسپانیا د پاچاهۍ په مالي مرسته د یوه ایټالوي ماڼو له لوري چې **کرستیف کولمب** نومیده کشف شوه. کرستیف کولمب د خپل ژوند تر پایه پورې په دې باور و چې د هغه په واسطه کشف شوې سیمې د آسیا د **هند**، د ختیځو سواحلو یوه برخه ده چې له همدې امله د دغې سیمې بومي خلک یې هندي ونومول. وروسته دغه سیمه د **لویدیځ هند** په نامه شهرت وموند. په داسې حال کې چې له کومو خلکو سره هغه آشنا شوی و، د امریکا سره پوستي بومیان وو.



کریستف کولمب

د شپاړسمې زېږدېزې پېړۍ په پيل کې د ايټاليا هېواد يو بل شخص چې **امريکا وسپوچي** نومېده، د سوېلي امريکا شمالي برخو ته سفر وکړ. هغه وليدل چې دا سيمه هند نه، بلکې يوه نوې لويه وچه ده چې له همدې امله، دغه نوې وچه د هغه په نامه (**امريکا**) ياده شوه.

له دې وروسته د اروپا لويو هېوادونو د نوې نړۍ (امريکا) په لور مهاجرت وکړ. **هسپانويان** او **پرتگاليان** چې کله د مرکزي او سوېلي امريکا سيمو ته ننوتل، له تاوتريخوالي يې کار واخيسته او د **امريکا پخواني لومړني** وگړي يې د ځان تابع کړل.

اروپايانو وکولای شول چې ډېرې سيمې ونيسي او لويې ستروا‌کۍ په هغه ځای کې جوړې کړي. له بلې خوا مهاجرتونه د اروپا د سترو ځواکونو ترمنځ د جگړې لامل وگرځېدل. د امريکا د نيول شوو سيمو پر سر د اروپايانو د جگړو له امله د امريکا د خلکو لپاره د خپلواکۍ زمينه هم برابره شوه.

### په ټولگي کې فعاليت

زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د امريکا د کشف په اړه او دويمه ډله دې په دې اړه چې څرنگه دغه لويه وچه امريکا ونومول شوه خبرې اترې وکړي.

### پوښتنې

۱. د امريکا لويه وچه په کوم کال او د چا په واسطه کشف شوه؟
۲. د امريکا وچه يې ولې په دغه نامه ياده کړه؟
۳. د امريکا لومړنيو کشف کوونکو د دغې لويې وچې په اړه څه فکر کاوه؟
٤. امريکا ته د اروپايانو ننوتل څه ډول بدلونونه رامنځ ته کړل؟

## آیا د امریکا د متحده ایالتونو د خپلواکۍ په اړه پوهېږئ؟



په تېر لوست کې مو د کرستیف کولمب په واسطه د امریکا د کشفولو او د اروپایانو د مهاجرت د پیل په اړه معلومات ترلاسه کړل، اوس د امریکا د متحده ایالتونو له خپلواکۍ سره آشنا کېږئ.

د **امریکا** له کشفېدو سره سم، هغه ډلې چې د شتمنۍ په لټه کې وې دغې وچې ته ولاړې. د **پرتگال** او **هسپانیې** له هېوادونو وروسته **انگلستان** او **فرانسې** د نوې نړۍ د زیاتو شتمنیو د ترلاسه کولو په موخه شمالي امریکا ته مخه کړه.

د شمالي امریکا دیارلس ایالتونه د انگلیس مستعمراتي ستر واکۍ تر ولکې او سوېلي برخې چې د شمال په پرتله وروسته پاتې وې، د **فرانسې** د دولت تر ولکې لاندې راغلې.

د انگلستان دولت له خپلو مستعمراتو څخه د پیسو د ترلاسه کولو لپاره په ۱۷۶۵ زېږدېز کې د **تمبر** په نامه د مالیې اخیستلو قانون په امریکا کې د دیارلسو ایالتونو پر وگړو وضع کړ. دغه عمل د خلکو د ناخوښۍ لامل وگرځېده چې د انگرېزانو او د شمالي امریکا د وگړو ترمنځ د ګډوډیو لامل شو.

د مستعمراتو وگړو د انگلیسي توکو له اخیستلو چې لوړ گمرکي مالیات پرې وضع شوې

وو، ډېره وکړه او د اړتیا، چای او ځینې توکي یې د فرانسویانو په مرسته د قاچاق په ډول خپلو ایالتونو ته راوړل، خو په ۱۷۷۳ زېږدیز کال کې د چای درې بېړیو د تشېدو لپاره د **بوستون** په بندر کې لنگر واچاوه. سره له دې چې خلکو یې مخالفت وکړ، خو بېړۍ بېرته ونه گرځېدلې چې په پایله کې خلکو یو بل ته لاسونه ورکړل. او په پټه بېړۍ ته ننوتل او ټول چای یې سمندر ته وغورځاوه. دغه پېښه د امریکا د خلکو د **خپلواکۍ د جگړې** د پیل پلمه شوه.

د انگلیسانو پر وړاندې د منظم مقاومت د درلودلو په موخه، انقلابیانو **جورج واشنگټن** د ځواکونو د اعلی قومندان په توگه وټاکه. انقلابیانو په پیل کې د بوستون بندر ونیو. جگړې په تېزۍ سره دوام درلوده، انقلابیانو ډېر ژر کنگره جوړه کړه او د امریکا د **خپلواکۍ اعلامیه** یې تصویب کړه.

په پای کې په ۱۷۸۳ زېږدیز کال کې د **انگلستان دولت** په رسمي توگه د **امریکا د متحده ایالتونو** خپلواکي په رسمیت وپېژندله او د **فرانسې دولت** ته اجازه ورکړل شوه چې په امریکا کې استحکامونه جوړ کړي.

د امریکا په تاریخ کې د لومړي ځل لپاره نوی ملت منځته راغی چې گډه اردو او بېلا بېل خو یو موټي ایالتونه یې درلودل. له دې وروسته دغه هېواد د امریکا متحده ایالتونه ونومول شو او د **اساسي قانون** په تصویبېدو سره یې جورج واشنگټن د **جمهور رئیس** په توگه وټاکل شو.

په ټولگي کې فعالیت

زده کوونکي دې له انگلستان څخه د امریکا د خپلواکۍ اخیستلو د څرنگوالي په اړه خبرې اترې وکړي او پایله دې په ټولگي کې ولولي.

پوښتنې

۱.د امریکا له کشفېدو وروسته اروپایان ولې هلته ولاړل؟
۲.د انگلستان دولت د پیسو د ترلاسه کولو په موخه، د امریکا پر خلکو کوم قانون وضع کړ؟
۳.د بوستون بندر د پېښې په اړه خو کرښې معلومات ولیکئ.
۴.په کوم کال کې د انگلستان له لوري د امریکا د متحده ایالتونو خپلواکۍ په رسمیت وپېژندل شوه؟

## لومړی څپرکی

**خلافت**: هغه ځانګړي سیاسي نظام ته ویل کېږي چې د حضرت محمد ﷺ له رحلت څخه وروسته په مسلمانانو کې دود شو او تر ٤١ سپوږمیز کال پورې یې دوام وکړ.

**نهضت**: خوځښت، ادبي، ټولنیز او سیاسي حرکت.

**پاڅون**: راپورته کېدل، د واکمن سیاسي نظام په وړاندې حرکت.

**داعي** (داعیان): دعوت کوونکی، مبلغ

**موبد**: روحاني، زردشتي ملا

**اورتون**: هغه ځای چې زردشتیان پکې خپل سپېڅلی اور ساتي، د زردشتیانو عبادت ځای.

**هویت**: هغه څه چې په هغه باندې یو شخص او یا یوه ټولنه پېژندل کېږي.

**قلمرو**: هغه سیمه او ځمکه چې د یوه حکومت یا واکمن تر فرمان لاندې وي.

## دویم څپرکی

**عیار** (عیاران): د خلکو هغه ډله چې په دویمه او درېمه هجري پېړۍ کې یې په ځینو ختیځو اسلامي ښارونو کې فعالیت درلود. هغوی د ځوانمردو او کاکه په نومونو یاد شوي دي.

**یاسا**: هغه قانون او مقررات چې چنگیز د مُغولو لپاره وضع کړي و.

اتابک: مربی، شهزاده او لوی وزیر

## درېم څپرکی

**قزلباش**: د سرې خولۍ په معنا ده او په اصطلاح کې د صفویانو هغو ملاترو پوځي ډلو ته ویل کېږي چې سرې خولۍ یې په سر کولې.